

## ایران کې د افغانانو وژنه غمونکې ده!

# څرک

شپاړسم کال، څلورمه، پرلپسې ۱۱۷مه گڼه،
ثور-جوزا ۱۳۹۹ل، شوال المکرم ۱۴۴۱هـ ق، مئ ۲۰۲۰م

- غازي عبدالصبور سالنگي اتل او قهرمان!
- له مسئولیته تیښته نو همدې ته وايي...!!

د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د قبر سپکاوی

دشهید عالیقدر امیر المؤمنین ملا اخترمحمد منصور تقبله الله
د ځلورم تلین په مناسبت ځانگړې لیکنې:

⇐ **شهید منصور صاحب**
پخپل شهادت سره امریکایانو ته ستر درس ورکړ!

⇐ د پولادي هوډ لرونکي رهبریاد!!

⇐ منصور؛ رهبری از دلِ سیاست و مبارزه

زموږ کښتۍ یې ډوبوله، خپل دریاب یې توپاني شو

د هیواد علمي او جهادي شخصیت شیخ فقیر الله رحمه الله ژوند، خدمتونو او کارنامو ته کتنه



د صحت کمیسیون له عمومي مسؤل ملا عبدالحق آخند سره مرکه

**د قتل یوه پېښه**
چې ټوله امریکا یې ولړزوله!

# ځرک

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه


شپاړسم کال، څلورمه، پرلپسې ۱۱۷مه ګڼه، ثور-جوزا ۱۳۹۹ل،

شوال المکرم۱۴۴۱هـ ق، مئ۲۰۲۰م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مبڼی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# ایران کې

## د افغانانو وژنه غموونکې ده!




د خواشینۍ ځای دی اورو چې په ایران کې زموږ ځو هېوادوال یو ځل بیا د هغه هېواد د پولیسو د ناترسه چلند او عمل له کبله ژوندي سوځېدلي او ځو نور ټپیان شوي دي، په داسې حال کې چې یوازې لږ موده وړاندې زموږ یو شمېر نور هېوادوال د همدې ګاونډي د عسکرو له لوري په اوبو کې ځان غرقولو ته مجبور شوي وو.

په داسې وخت کې چې افغانان د بل هر وخت په پرتله د نړیوالو او ګاونډیانو زیات ملاتړ او لاسنیوي ته اړتیا لري، د ایراني چارواکو لخوا داسې عمل ډېر غموونکی او حسنِ همجوارۍ له اصولو سره په سخت ټکر کې رازی.

د افغانستان اسلامي امارت له ایرانه مطالبه کوي چې د دې تازه او مخکینیو پېښو پلټنه وکړي او عاملین یې مجازات کړي - که داسې ونشي، دا به نه یوازې د دوو ګاونډیو هېوادونو د ولسونو پر خپلمنځي روابطو منفي اغېز ولري بلکې په نړیواله کچه به هم د ایران انځور مشکوک معرفي کړي.

له بده مرغه، له تېرو اتلسو کلونو راهیسې د افغانانو پر سر د حاکمانو په حیث داسې اشخاص تحمیل شوي چې د خپل هېواد ارضي تمامیت، خپلواکي، حیثیت او د خپلو خلکو ژوند ته، که په هېواد کې دننه وي او که بهر، تر کوم متاع زیات ارزښت نه ورکوي.

د هېواد د استقلال د اعادې او له خپلې خاورې او ولسه د دفاع لپاره د اوسنۍ ناکامۍ، فاسدې او د پردیو تر نفوذ لاندې ادارې پرځای د یوه مستقل، د افغانانو له دیني او ملي ارزښتونو سره د موافق، په خپلو پښو ولاړ، ټولشموله مرکزي او مقتدر حکومت ته اړتیا ده. افغانان د اشغالګرو ځواکونو د وتلو په پیل سره دې هدف ته د ورنږدې کېدو په حال کې دي. د خپلې خاورې او خلکو له ژونده د دفاع لپاره اسلامي امارت، د خپلو پرګنو په مرسته، دې‌هدف ته د رسېدو لپاره په خپل ټول توان کار کولو ته ژمن دی، او تر پوره کېدو پورې به یې تعقیبوي.

ان شاءالله

# له مسئولیته تیښته نو همدې ته وایی...!!

لیکنه: موسی فرهاد

څو ورځې وړاندې د ملګرو ملتونو د امنیت شورا له ادرسه رسنیو ته یو اوږد راپور واستول شو، چې پکې ویل شوي وو، افغانستان کې اوس هم په زرګونو القاعده جنګیالي شتون لري، او اسلامي امارت ورسره په مستقیمه رابطه کې دی.

که څه هم د یادې نړیوالې ادارې بین المللي حیثیت خو دا ایجابوي چې هره خبره یې باید مستنده او پر واقعیتونو بنا وي، له تناقضاتو، اټکلونو او تخمیني قضاوتونو څخه باید پاکه وي.

مګر متاسفانه چې د دغې ادارې دا وروستی راپور له هر ډول معیار څخه خالي او مطلق پروپاګند، له بدنیتیو او کرکې څخه ډک یو ګذارش و.

جالبه دا وه چې په یاد راپور کې پخپله دا هم ویل شوي چې د دې معلوماتو لپاره کومه خپلواکه پلټنه نه ده شوې، بلکې راپور د کابل ادارې او ځینو نورو حکومتونو د معلوماتو په اساس تهیه شوی. (په دومره ستره کمزورۍ له اعتراف سره سره بیا هم د دغه سازمان په ادرس داسې ناچله او غیرمستند راپور خپریدل؛ پخپله د هغه نارښتینولۍ په ډاګه کوي.)

طالبانو پخپله یوه رسمي تبصره کې د یاد راپور ځینې تناقضات په ګوته کړي، مثلاً: د اسلامي امارت د څو ادارو د مسؤلینو نومونه غلط ښودل شوي دي، دغه راز د یوه ولایت والي یو ځای مړ بلل شوی او په همدې راپور کې بل ځای برحاله والي معرفي شوی دی. په راپور کې راغلي چې د اسلامي امارت د شورۍ تشکیل یې د اسلامي امارت له رسمي سایټ څخه اخیستی، په داسې حال کې چې اسلامي امارت د رهبري شورۍ تشکیل په هیڅ سایټ یا رسنۍ کې نه دی خپور کړی، دا ټول څه ثابتوي چې دغه راپور له غیر واقعي او ګمراه کوونکو منابعو څخه تهیه شوی دی.

په راپور کې زیاته شوې چې له ۲۰۱۹ کال راهیسې-تراوسه د طالبانو او القاعدې اړیکې شته او القاعده د طالبانو په مرسته په افغانستان کې یو ځل بیا ځواکمنه شوې.

ویل کیږي چې دا راپور د امنیت شورا د (تحلیلي مرستې او د بندیزونو د څار ډلې) لخوا چمتو شوی او د تیرې مئ میاشتې پر۲۷مه نیټه په داسې حال کې د امنیت شورا غونډې ته وړاندې شوی؛ چې د دوحې د تړون له مخې ټاکل شوې وه د همدې میاشتې پر۲۹مه نیټه باید د ملګرو ملتونو امنیت شورا کې پر دې بحث وشي؛ چې د افغانستان اسلامي امارت مسئولین د ملګرو ملتونو له تورلیست څخه وایستل شي. ترڅو په افغان سوله کې موانع له منځه ولاړ شي. دا پریکړه ملګرو ملتونو هم د قطر د تړون پرمهال تائید کړې وه.

په ریپوټ کې پورتنۍ خبرې ته ورته نورې هم ډېرې بې سنده او بې مدرکه خبرې اوډل شوې چې د ملګرو ملتونو په شان نړیواله اداره څه چې حتی یو باشعوره شخص یې هم ښایي په ویلو د شرم احساس وکړي.

څکه چې له ورایه سړی پوهیږي چې د دې بې سنده او بې دلیله تورونو کتارولو مقصد فقط او فقط دا دی چې ملګري ملتونه له خپله مسئولیته ځان ګوښې ته کړي.

او هغه ژمنه چې د دوحې د تړون پرمهال یې کړې وه؛ چې د افغانستان د سولې په لاره کې به مرسته کوي، د

تړون موادو ته به ژمن پاتي کيږي؛ په همدې مقصد به د مئ پر ۲۹مه نيټه د طالب مشرانو نومونه له تورلړه باسي؛ چونکه هغه ژمنه يې ونشواى پاللى؛ نو د ځان د خلاصون په پار يې د دروغو داسي بې سنده تورونه پرامارت ولګول، چې له حقيقت سره نيم فيصد هم تړاو نلري.

متاسفانه چې ملګرو ملتونو د افغانستان په اړه په سلګونو ځله پخپلو دا ډول بې بنسټه او يولوريزه څرګندونو سره خپل حيثيت ته دروند زيان رسولى، هيڅوک بيا هيله مندي نشي لرلاى چې دغي ادارې ته دې د يو منځګړي او بې پرې ارګان په سترګه وګوري.

د دوحې د تړون له مخې چې ترهرڅا وړاندې يې ملګروملتونو امنيت شورا تائيد وکړ؛ پکار دا وو چې له تړون نه لس ورځې وروسته د بنديانو تبادله تکميل شوې واى، بين الأفغاني مجالس پيل شوي واى، د افغانستان د راتلونکي نظام، اوربند او نورو اړوندو مسائلو په اړه جدي بحثونه شوي واى؛ يوې مثبتې پايلې ته رسيدلي واى؛ متاسفانه چې په دې اړه نه امريکا هغسي- چې لازمه وه؛ جديت وښود، نه ملګرو ملتونو او نه، نورو ذيدخله اړخونو.

له همدې ځايه وه چې ترننه پورې د دوحې د تړون مواد د تعميل پرځاى په پرلپسې- توګه له تعويق سره مخ کيږي، وروستى قدم چې بايد د م.م.امنيت شورا اخيستى واى؛ او له تورليسته يې طالب مشران ايستلي واى، او په دې توګه يې خپل د منځګړيتوب، نړيوال حقوقي مسئوليت ادا کړى واى؛ متاسفانه چې دلته يې هم له ناغيړۍ کار واخيست، برعکس د افغانستان د مسائلو د حل په لاره کې د مرستې پرځاى يې له پروپاګنده ډک داسي راپور نشر- کړ، چې له امله يې پرځان د افغان ولس باور نور هم زيانمن کړ.

او د ملګرو ملتونو نړيوال سوله ايز حيثيت تر سوال لاندې راغى، چې واقعاً دغه سازمان د هغو داخلي او بهرني اړخونو تر اغيز لاندې راغلي چې هغوى په افغانستان کې ښه ورځ ليدل نه غواړي، د سوله ايز او خپلواک افغانستان په حق کې نه دي، بلکي د مستعمره، جنګ ځپلي، او نا امنه افغانستان کې خپلي ګټې خوندي بولي.

که فرضاً داسي څه وي لکه څنګه چې د ياد راپور له محتوا څرګندېږي؛ دا نو بيا رښتيا چې له وجداني او اصولي مسئوليته د تيښتې يوه هڅه ده. چې بايد د ملګرو ملتونو غوندې نړيواله باحيثيته اداره يې مرتکبه نه شي.

پاى .....!



# حکمت

الله پاک قبلول پټ ساتلي ترڅو زړونه په وېره کې پاتې شي.

د توبې دروازه يې پرانستې پرېښې تر څو انسان په اميد کې پاتې شي.

اعتبار يې خاتمې ته ورکړى تر څو انسان په خپل عمل مغرور نه شي.

کڅېرې شکل او بدن له روح څخه مهم واى بيابه روح اسمان ته نه ختله او بدن به د خاورو لاندې نه دفن کيدو

ډېر په ځمکه کې مشهور وي خو په اسمان کې نا معلوم وي.

ډېر په ځمکه کې نا معلوم وي خو په اسمان کې معلوم وي

بهتر د الله په وړاندې تقوا دار دى نه واکمن

( إن أکرمکم عند الله أتقاکم)

# د قتل یوه پېښه چې ټوله امریکا یې ولړزوله!



حسن مومند

دامریکا په مني سوټا ایالت کې دغلا په تور دنیول شوي تورپوستي امریکایي جارج فلویډ دپولیسو په یو مرکزکې دمړینې د ویدیو خپرېدلو سره سم په سیمه ایزه سطحه لاریونونه پیل شول چې ډېر ژر ټولې امریکا ته خپرې شوې. دامریکا په ښېر هېوادچې پکې دخان ځانی چاپېریال دی ؛ خلک یې سخت مصروف اودهرچا غم اوخوښي خپله وي ؛ اقوام ، قبایل او انساب نشته او نه هم قومي قبیلوي اونسبي خواخوږي اوبدبیني شته خوسره له دې هم ددې یونارروا قتل له امله ډېر زیات خلک راپورته شوي اوله مني سوټا تر واشنګټن ډي سي پورې چې هر ځای لاریون کونکو ته وکتل شي سم دانسانانو سمندرښکاري .

مقتول تور پوستی دی او زیاتره لاریون کونکي هم تور پوستي دي خو سپین پوستي پکې هم ښه ډېر دي او ددې ظلم پر ضد داسې قهر اوغصه ښکاره کوي لکه دمنی سوټا پولیسو چې یوتن نه بلکې ټول خلک وژلي وي .

سپینه ماڼۍ چې په دې مادي نړۍ کې دطاقت تر ټولوستره نښه ګڼل کېږي اوس دزرونولاریون کونکو تر محاصرې لاندې ده او دامریکا دمتحده ایالاتو ولسمشر ډونلډ ټرمپ چې دنړۍ تر ټولو ستر طاقت لرونکی شخص ګڼل کېږي اوس یې دهمدې سپینې ماڼۍ په زیرزمیني کې دنړۍ تر ټولو یوې خوندي ګېونکې خونې ته پناه وروړېده .

هغه امریکا چې نړۍ کې به یې د دولتونو پرضد ولسونه راپاڅول او د ولسي لاریونونو له لارې به یې نظامونه ړنګول نن پخپله مظاهرو نیولې او نظام د‌ړنګېدو دلوی ګواښ سره مخامخ دی.

امریکا به دنړۍ په کمزورو هېوادونو کې دخپلو پلانونو دتطبیق نندارہ کوله نن کمزوري هېوادونه اوکمزوري ولسونه دامریکا ننداره کوي ؛ له دې نندارې خوند اخلي او خپلې خواوې پې سړوي .

هغه امریکا چې به یې په هېوادونو کې دخپلوشیطاني پلانونو دتطبیق لپاره دهېوادونو سیاسي نظامونه ړنګول او فوځ به یې اقتدار ته راوستلو نن په هماغي امریکاکې د ولسمشر پورې ټولې سیاسي څېرې پټې دي او دامریکا په لارو کوڅو اوسرکونو یوازې وسلوال ځواکونه ښکاري او داسې برېښي لکه دنظام پرضد چې فوځ کودتا کړې او ولس یې پرضد راوتی وي .

هغه امریکا چې ټوله نړۍ کې یې بد امني خپره کړېده نن پکې دبل هر ځای نه زیاته بدامني ده.

هغه امریکا چې دشوموپلانونو اومخامخ حملو په نتیجه کې یې زموږ دګران هېواد په شمول ګڼ اسلامي هېوادونه داور په لمبوکې لولپه کړل نن پخپله د اور په لمبو کې لولپه ده ؛ دنګې پلازې ، سوپر سټورونه ، دولتي دفترونه اوموټرې یې پخپله دخپل ولس په لاسوسوځېږي؛امنیتي ځواکونه یې دمخنیوي هڅې کوي خو پکې ناکام دي . نن امریکایي ولس اوامنیتي ځواکونه دیوبل په مقابل کې ولاړ دي.

هغه امریکا چې تل یې دخلکو ودانۍ په درندو بمونو ورانې کړېدي نن یې دهېواد ابادۍ دخپلو خلکو په لاس ورانېږي.

هغه امریکا چې یې دیرغلونو له لارې داسلامي هېوادونونظامونه له منځه وړي نن یې دخپل ولس په لاس د۲۳ ایالتونو نظامونه فلج اوپکې بېړنی حالت اعلان شویدی. هغه امریکا چې فوځونو یې تل

پرنوروګولۍ وروځې اودبې ګناه خلکو وینې یې توی کړیدي نن دهماغې امریکا دامنیتي خواکونو دټوپکو شپېلۍ دخپل ولس پرلور دي .

هغه امریکاچې دخپل هر دښمن داقتصاد تباه کولو په موخه یې تل هرډول ناوړه اقدامات کړیدي پخپله وایي چې په هېواد کې دروانو ګډوډیو له امله یې اقتصاد ته ۵ زره ملیارده ډالر تاوان رسېدلی دی .

هغه امریکا چې یې دستروبمونوپه غورځولو زموږ دغریبو کورونه ، زموږ دافتخار ځلي او زموږدجوماتونو منارونه نړول نن په هماغه امریکا کې مظاهرچیانو دامریکا دمؤسس او بنسټ ګر جورج واشنګټن مجسمه راونړوله چې دا دامریکاپه تاریخ کې دامریکا په معنوي حیثیت ډېرسترګوزار دی.

هغه امریکا چې دځمکواوزېرمو دقبضې اوغصب په موخه به یې په قبضه شویو سیمو دخپلو بیرغونو د ودرولو هڅې کولې نن یې بیرغ دخپلو وګړو په لاس سوځول کېږي چې دا دامریکا دملا په تېر دامریکا دخپلو خلکو ډېر ستر ګوزار دی .

او هغه امریکا چې دخپلومادي موخولپاره یې دټولې نړۍ د ژوندۍ کولو هڅې کولې اوددې لپاره ډېر ناوړه اقدامات دمشر- اوکشر- بوش په زمانه کې ترسره شوي وو نن دامریکا په اړه هماغه بوش وایې:امریکا کې دروانو بې عدالتیو په اړه اندېښمن یم ؛ هغه دجورج فلویډ وحشیانه وژنې ته په اشارې ویلي دي: وېره لري چې هسې نه روانې بې عدالتۍ هېواد د نه جبرانېدونکې ماتې سره مخ او جورج فلویډ په څېر یې ژوندۍ کړي .

دبوش اندېښنه بېځې پرځای ده هغه هم پدې پوهېږي چې داد بې عدالتي یانې ظلم مکافات دی ؛هغه په هېواد کې دننه د ولس په وړاندې ددولت دروانوډبې عدالتیو او ظلمونو نه ناخوښه ښکاري خوامریکا چې په ټولې نړۍ کې کوم ظلمونه کړیدي چې دمشر اوکشر بوش پکې ډېره ستره ونډه ده هغه ظلمونه نه یادوي او نه هغه داسې بد عمل ګڼي چې بد نتایج ولري ځکه چې امریکایان دخپل هېواد نه بیرون په نورو خلکو کېدونکي ډېرسترظلمونه هم ظلمونه، نه ګڼي ؛ دامریکایانوعمل ته چې وکتل شي داسې ښکاري لکه یهودان چې له یهودانو پرته ټول انسانان د دوه پښو وحشي ځناور ګڼي امریکایان هم په همدې عقیده دي اوله امریکا بېرون ټولو خلکو اوخصوصاً مسلمانانو ته دضرر رسونکو حشراتو اوحیواناتونه هم ډېر په کم نظر ګوري.

درنګ اونسل پر بنسټ دروان تعصب اوتبعیض پر ضد که په امریکا کې دننه ناره پورته کېږي دا ښه خبره ده ؛ دیو توروپوستي دمظلومانه قتل له امله که دظالمانو پرضد دامریکا ولس راپورته کېږي داهم ډېره ښه ده خو پوښتنه دا ده چې امریکایان چې ځان دنړۍ تر ټولو مهذب اوبشر دوسته انسانان ګڼي پر افغانستان او عراق دامریکا یرغل اودې دواړو هېوادونو کې دامریکایي وحشي- فوځیانو په لاس دکوچنیانو او مېرمنو په شمول دسونو زرو بې ګناه انسانانوقتل عام او بې ساري لویه بربادي ولې نه ویني اوپرضد یې نه راپورته کېږي ؟

آیا همدا بشر دوستي اومهذبتوب دی ؟

دیو امریکایي په وژل کېدو دې قیام کوي او دهمدې امریکایي فوځیانو په لاس چې په سونو زره بې ګناه انسانان وژل کېږي پرې دې چوپه خوله وي ؟! که امریکایي ولس په امریکا کې دننه درنګ او نسل دتعصب او تبعیض خلاف وي نو دامریکایي او نا امریکایي دتبعیض او تعصب سره ولې خپل مخالفت نه ښکاره کوي ؟

خبره یواځې دعراق او افغانستان نده بلکې په ټولې نړۍ اوخصوصاً عالم اسلام کې دروانو ټولو بد امنیو ، وینو تویدلو اوداخلي جنګونو تر شا دامریکا لاس دی ؛ اوس چې دیو امریکایي په وژل کېدو امریکایان راپاڅېدل که همداسې دامریکایي دولتونود ظلمونوپرضد امریکایان راپورته شوي وای ولې به نړۍ د دومره سترې بد امنۍ ښکار کېدله او ولې به دا دومره زیات بې ګناه انسانان دوحشت ښکار کېدل.

حقیقت دادی چې په نړۍ کې دتر سره شویو اوروانوظلمونو په هکله دامریکا ولس او دولت دیوبل نه بېلول ؛ یومجرم ګرځول اوبل ته برائت ورکول بېځې ناسم قضاوت دی ،ځکه چې دولتي ټول ظالم مشران دهمدې ولس له منځ نه راغلي اوهمدې ولس چې یوځل ځوک منتخب کړیدي نودهغوئ دټولو وحشتونو دلیدلو نه پس یې بیاهم همغوئ منتخب کړیدي چې پدې توګه ټول امریکایان په ټولو شویو او روانو وحشتونو کې یوشان شریکان ګڼل کېږي .

نو تعجب دی دهغو خلکو پر حال چې ددې لاریونونو نه پس امریکایان دژوندي احساس لرونکی ملت په القابو یادوي. ځوک چې دبشریت دښمنان نه وي ؛ بشر دوستي اوخواخوږي یې عامه وي ؛عدل په هرځای کې غواړي او دهر چا اوهرځای کې دظلم خلاف وي هغوئ ددې وړ دي چې دژوندی احساس ځښتنان وګڼل شي .

په اوسنۍ زمانه کې دځمکې پر مخ له امریکایانو زیات دمادیاتو وږي ، دسیمواو زېرمو دغصب حریصان ؛ دبشریت دښمنان ، دبې ګناه انسانانو زیات قاتلان او پر کمزورو ولسونو زیا ظلم کونکي نشته .

روان حالت ددوئ دبدو اعمالو مکافات دي ؛ ټول مظلوم ولسونه هیله لري چې دا حالت نور هم زیات بدتر شي چې په نتیجه کې امریکا ټوټه ټوټه ، غرور یې مات او ټوله نړۍ یې له شرونو خوندي شي. ان شاءالله تعالی .



# زموږ کښتۍ يې ډوبوله، خپل درياب يې توپاني شو

قاري حبيب

امريکا چې له تيرې څه کم يوې پيړۍ راهيسې د نړۍ مقتدر هيواد ګڼل کيږي په دې شهرت لري چې د نړۍ په بيلابيلو هيوادونو کې د خپلې پوځي برلاسۍ او سياسي ګټو لپاره د جګړو اورونه بلوي. په هيوادونو يرغلونه کوي، بلواګانو تـه لمـن وهـي، ولسـونه د جنګ لمبو تـه تېـل وهـي خـو خپلـه د خيـر پـه غونـډۍ ناسـته او د انسانانو پر هډونو بل شوي اور ته ځان تودوي.

اما دا ځل وينو چې دغه اور خپله په امريکا کې بل شوی دی، په ټولنيزو رسنيو کـې انځورونـه ښـيي چـې د امريکـا پـه مختلفـو ښارونو کې د اعتراضونو يو خونړۍ څپه راپورته شوې ده، قهريدلي معترضـين پـه حکـومتي ادارو، د پوليسـو پـه مـوټرو او دولتـي تاسيساتو بريدونه کوي، دولتي ودانيو او موټرو ته اور اچوي او له هيڅ تعرض او تهديد څخه دريغ نه کوي.

که څه هم پـه امريکـا کـې د سپين پوسـتې حـاکمې طبقـې پـه وړاندې د تبعيض ځپليو تور پوستو اعتراضونه اوږده سـابقه لـري چـې له دې وړاندې هم په ۱۹۹۲ م کـې پـه لاس انجلس پـه ۲۰۱۴ کـې پـه فرګوسن او په ۲۰۱۵ کې د مريلنډ ايالت پـه بـالتيمور ښـارونو کـې دې تـه ورتـه اعتراضـونه راپورتـه شـوي وو. امـا د اوسـنيو بلواګـانو خصوصيت دا دی چې دا د امريکا د تاريخ تر ټولو پـراخ اعتراضـونه دي چې سلګونو ښارونو ته يې لمن غځيدلې او لا هم د پراختيا په حـال کـې دي.

د امريکا په متحده ايالاتو کې روان اعتراضونه له دې راپيـل شول چې د روان ميلادي کال د مې مياشتې په ۲۵ مه د مينـه سـوټا آيالت په ميناپولس ښـار کـې د جـورج فلويـډ پـه نـوم يـو ۴۶ کلن تورپوستی امريکايي يوې مغازې ته ورځي تر څو سـګريټ واخـلي، دوکاندار وايي چې د جورج فلويډ لخوا ورکـړل شـوی شـل ډالريـز نوټ جعلي دی، له دې سره جنجال پيښيږي او دوکاندار پوليسو تـه زنـګ وهـي. شـيبه وروسـته پـوليس را رسـيږي او تـور پوسـتی امريکايي نيسي پـه ځمکـه يـې څملـوي ، د ډرک چـاوين پـه نـوم د پوليسو يو سپين پوستی افسر د تورپوستي جـورج فلويـډ پـه غـاړه ګونډه ږدي دغه راز نور پـوليس د هغـه پـه اورميـږ او نـس بانـدې ورکيني.

سپين پوستي پوليس تور پوستی سړی څملولی او په غاړه يې ګونډه ور اېښې، خلک په سرک تګ راتګ کوي او ځينې يې د دې صحنې انځورونه اخلي. خلـک پوليسـو تـه زارۍ کـوي چـې خپـل زنګون د جورج فلويډ له غاړې پورته کړي خـو هغـه هـيڅ بـاک نـه کوي، تور پوستی په ډير عجز د ژوند خواست کـوي، کلـه د خپلې

مور نوم اخلي او د مرستې غوښتنه کوي او کله په ډیر عجز وایي (ساه نه شم اخیستلی) خو بیا یې هم له غاړې زنګون نه پورته کیږي، تر دې چې له پوزې یې وینې راوځي او بدن یې بې سده کیږي. ۹ دقیقې وروسته چې کله پولیس د نوموړي له غاړې پښه پورته کوي نو ګوري چې تور پوستی فلویډ ژوند له لاسه ورکړی او مړ دی.

د سپین پوستو پولیسو لخوا د تورپوستي جورج فلویډ دغه ورځ بې رحمانه مرګ چې په اجتماعي رسنیو کې ژوندۍ صحنې نشر- شوې، نړۍ ته ټکان ورکړ. دا د وحشت او ځناروتوب اوج و. یو متهم چې اصلا بې ګناه و، په ډیر ظلم او قساوت په داسې حال کې ووژل شو، چې مخ یې د پاخه سرک په سوزنده ډبرو لګیدلی و، د ژوند خواست یې کاوه خو بیا هم ور باندې رحم ونه شو.

د تور پوستي فلویډ دې وژلو یو ځل بیا د تبعیض په وړاندې د کرکې او احتجاج هغه اور را ژوندی کړ چې په امریکایي ټولنه کې اوږده سابقه لري. تر څو لسیزې پخوا پورې په امریکا کې تورپوستو ته اصلا د انسانانو په نظر نه کتل کیدل، د هغوی هوټلونه، کارځایونه، تعلیمي ادارې او هر ځه له سپین پوستو بیل وو. وروسته که څه هم امریکایي چارواکي د بشر- د حقوقو د نړیوالي ټیکه دارۍ مدعیان شول اما د تور پوستو او نورو اقلیتونو په خلاف تبعیضي- چلند لا هم جریان لري. د یوې احصائیې له مخې په تیر ۲۰۱۹ م کال کې د امریکایي پولیسو لخوا له زر تنو زیات کسان بې محاکمې وژل شوي چې په ځلورو کې درې برخې یې تور پوستي دي.

د جورج فلویډ له وژل کیدو سره راپورته شوی احتجاج ډیر ژر د امریکا ټولو ایالاتونو ته خپور شو، همدا اوس په لسګونو ښارونو کې دغه احتجاجونه روان دي. له دې جملې په نیویارک، لاس انجلس او پلازمینه واشنګټن کې هم په پوره قوت اعتراضونه جریان لري. معترضین په بیلابیلو طریقو د احتجاج غږ پورته کوي، په اکثرو سیمو کې احتجاجونه په تاوتریخوالی اوښتي، ګڼ شمیر موټر، کارځایونه او حکومتي ودانۍ سوځول شوي دي. ډیر مظاهره کوونکي د سپینې ماڼۍ له خوا سره را ټول شوي دي، تر دې پورې چې دسپینې ماڼۍ د امنیت لپاره ملي ګارډ ګمارل شوی او ټرمپ څو ځله په زیر خانو کې پناه اخیستې ده.

د ټرمپ په مشرۍ امریکایي حکومت د معترضینو په وړاندې سخته رویه خپله کړې، په لومړي ځل امریکایي پوځیان لارو او کوڅو ته ایستل شوي تر څو د مظاهره کوونکو مخنیوی وکړي. د انټرنیټ قطع کیدو راپورونه ورکړل شوي، د سي این این خبریالانو په شمول امنیتي چارواکو سلګونه مظاهر کوونکي نیولي او په اخ و ډب کې د لسګونو کسانو د وژل کیدو خبرونه ورکړل شوي دي.

په امریکا کې پیل شوي خشونت آمیز اعتراضات که له یوې اجتماعي لاملونه لري بل اړخ ته سیاسي فضا هم د مظاهرو په اور تیل پاشلي دي. ټرمپ چې په سپین پوستو امریکایانو کې پراخ محبوبیت لري په وړاندې یې د دموکرات ګوند هڅه کوي چې له دې موضوع څخه د نوموړي د عامه محبوبیت د کمولو لپاره استفاده وکړي. د دموکرات ګوند پلویان هڅه کوي، اعتراضونه زور واخلي او د راتلونکي نومبر میاشتې تر ټاکنو وړاندې د ټرمپ د واکمنۍ دوره له آشوب او ګډوډۍ ډکه دوره معرفي کړي.

له بلې خوا روان اعتراضونه د کرونا له بحران سره یو ځای شوي او د امریکا اقتصاد ته یې درانه زیانونه اړولي دي، دا نارامۍ په داسې حال کې راپورته شوې چې په امریکا کې د کرونا له امله له ځلویښت میلیونه زیات خلک بې کاره شوي او کرونا تر سل زره زیات امریکایان وژلي دي. د نژادي تبعیض را برسیره کیدل او په امریکا کې د سپین پوستي او تورپوستی تر عنوان لاندې شخړو د دې هیواد نړیوال پرستیژ هم اغیزمن کړی دی او د امریکا د ضعف نقاط یې برملا کړي دي.

دا ټول څه ثابتوي چې هغه امریکا چې یو وخت یې زموږ په هیواد مغرورانه یرغل وکړ او غوښتل یې خپل افکار پر موږ وتپي اوس خپله له داسې بحران سره مخامخ شوی چې په سیاسي، اقتصادي او اجتماعي لحاظ یې پراخ زیانونه ور اړولي دي. امریکا نور په هغه موقف کې نه ده چې د نورو هیوادونو سرنوشت وټاکي، بلکې له خپلې لمنې یې اور اخیستی او د ځان په غم ککړه ده.

له دې څخه ثابتیږي چې د الهي تقدیر سره سم د امریکایي فرعونیت زوال پیل شوی دی او نور یې په نړۍ انحصاري قدرت پای ته رسیږي. دغه حالت نه یوازې زموږ د ملت بلکې د ټولو استعمار ځپلو هیوادونو او ملتونو لپاره ښه زیری دی. له بلې خوا هغو کم ظرفه پردیپالو او د طاغوت اجیرانو ته د عبرت وړ درس دی چې خپل راتلونکی یې په امریکا پورې تړلی و او امریکا ورته بې زواله ځواک ښکارېده. دوی باید په خپله تګلاره له سره غور وکړي او باید د بندګانو د بندګۍ په ځای د رب العباد جل جلا له بندګۍ ته راوګرځي.



# دپولادي هوډ لرونکي رهبرياد!!

بشير ارمان

دجوزا لومړۍ نېټه؛ هرکال پخپل راتګ موږ ته داميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصوردمظلومانه شهادت دردوونکې حادثه رايادوي،دهغې ترخنګ يې قايدانه،مبتکرانه اومجاهدانه صلاحيتونه،تاريخي برياوې اوکارنامې هم راپه زړه کوي اوزموږدفکرونواوذهنونوپه هنداره، په نيکمرغه ژوند اوتاريخي کارنامويې ديونا مکمل شوي - نيمګړي پاته داستان نقوش پرېږدي.

له شک پرته مرحوم منصورصيب په ډېرو نامساعدوحالاتو اوترينګلوشرايطوکې داسلامي امارت دسياسي اوجهادي قيادت پيټی پورته کړ، هغه مهال يولورته دامريکا په مشرۍ ديوکم پنځوس يرغلګرو هيوادو متحد ځواکونه پخپل ټول معاصرځواک دافغانستان اسلامي امارت دځپلواوافغان ملت غلامولولپاره دنړۍ لويه جګړه پرمخ بيوله اودخپل بري په موخه يې ډول،ډول نوې اوپرمختللې وسلې استعمالولې،دجهاد اومقاومت ليکو پوپناه کولوپه بد غرض يې دمختلفونومونواوعنوانو لاندې ځانګړي عمليات روان کړي وو،دکومو په ترڅ کې چې هره ورځ لسګونه اوډېرواري سلګونه مجاهدين،طالبان اوعام افغانان په شهادت رسيدل، دمظلوموافغانانوپه کليو،کورونو، مدرسو، روغتونو، مسجدونو او حجروزرګونه ټن وزن لرونکي بمونه غورځول،په دين اووطن مېن افغانان يې دنه پای لرونکو ويرونواومرګونوپه ټغرکينولي وو

بل پلوهمدې وخت کې دافغانستان اسلامي امارت دخپل صف دننه دځوقدرت مينو اشخاصولخوا دځينوجدي ستونزو اومشکلاتوسره لاس وګريوان شو،کله چې دافغانستان داسلامي امارت دمؤسس اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله دوفات خبرښکاره شو،اوداسلامي امارت رهبري شورى اکثريت غروپه يواتفاق دځنډ اوتاخيرپرته له شهيدمنصورصيب سره دنوي اميريازعيم په حيث بيعت وکړ،په دې سره ځوقدرت طلبه اشخاصودپرديو په لمسون داسلامي امارت دواحد صف دننه دفساداوفتنې په غرض دبغاوت اوعدم اطاعت يوه څپه راپورته کړه

که څه هم دبغاوت اونه اطاعت دافتنه په ښکاره دومره قوي اوپراخه نه برېښده،خو د زماني حساسيت اودمکاني اهميت له پلوه جدي اوډارونکې احساسيده،په دې دليل چې فتنه اچونکواشخاصو يا کړيو کړووړوته په کتوزموږ لوی دښمن (امريکا) سره دخپلې بايللې جګړې دبري تمه پيداشوه،او هغه خپلې ټولې شومې هڅې ترهمدې فتنې پورې وتړلې،اوداسې يې وانګيرله چې طالبان به نورخپل امارت دټوټې کيدواومتلاشي کيدو څخه ونشي ژغورلی،دهمدې بدنيت اوعزم په موخه يې داسلامي امارت صف کې درامنځته درزدلويولواوبغاوت کوونکو دهڅولو کوښښونه په کار واچول، دځپلوځارګروادارولخوايې ورته پريمانه مرستې اوکومکونه رسول شروع کړل،وسلې،مهمات اونغدي يې ور کړي اوپه لمسون يې ياغيانودهيواد جنوب لويديځ حوزې ځينو سيموکې داسلامي امارت خلاف حملې اوبريدونه شروع کړل،لله الحمد اسلامي امارت ته وفاداروموجاهدينو ورته دغابس ماتونکي ځواب په ورکولو هغوی داسې وځپل چې ترننه يې بيا سرونه نيغ نکړی شول،مرکزونه او منطقې ترې تصفيه شوې اوپه لنډ وخت کې ټوله فتنه په نطفه کې خنسا اوشنډه شوه،څو مشران يې دامريکايانواوکابل اجيررژيم لخوا په څرخکوکې پورته اووژغورل شول،دڅه موده ځنډ وروسته يې بيا هغوی دڅرخکوپه مټ غرنيو سيموکې ښکته کړل اوهلته يې ترې ويډيوګانې

وکړي،څونړۍ ته داوښيي چې دطالبانو صف دننه مخالفت شتون لري اوياغي شوي طالبان دامارت پرضد جګړه کوي

د ا د امريکــا پــه مشرۍ دصـليبي يرغلګـرائتلاف خـلاف دمقاومت اوجهادپه تاريخ کې لـومړی چـانس وچـې يرغلګروتـه دافغانستان اسلامي امارت دمتحد جهادي اوسياسي صف دننـه ديودرزجوړولوپـه اړه څـه نـا څـه هيلـه منـدي وراکړه،کنـه ددينـه وړاندې په کراتومراتو دوی هڅې کړې وې،چې دطالبـانو صف کې په يونه، يوشکل درزيا اختلافات واچوي،خوموفق شـوي نـه وو،داخل چې دملا محمدرسول اومنان نيازي په مشرۍ يوشـمېر کسانونه يواځي دمنصورصيب رحمـه اللـه سره دبيعـت کولـو نـه انکــار وکړبلکــې عمــلاً دامــارت پخــلاف يــې ځينوســيمو اوولســواليوکي بريدونــه اوحملــې هــم وکړي،نــو دلتــه وچــې امريکايانوته خپله پخوانۍ ورکه په لاس ورغله، هغـوی کوښـښ وکړچې ياد اشخاص تقويه اواکمال کړي،ليکن دهغوی په وړاندې دافغانستان داسلامي امـارت دفـاعي غبرګـون دومـره قوي،چټـک اومنظم وو،چې امريکا اونوروخارجيانوتــه يـې دهغـوی دپـاللو اوتقويه کولوفرصت اوموقــع پــه لاس ورنکړه،امــارت پــه لـــــومړي غبرګـــــون ښودودهغوی دتجمـع ټـول مرکزونـه ړنګ اوونيول،سربيره په دې چې اسلامي امارت دهيواد په ټولـو ولسواليو اوولايتونوکې دامريکايانو داشغال پرضد جګړې ته هـم دوام ورکړ،امريکايـــانو فکرکــا وه چــې کلــه د امــارت پــه مجاهدينودخپل صـف لـه داخـل څخـه بريدونـه اوعمليـات پيـل شي،نوهيڅکله به پـه دواړومحـاذونو جګړه ونکړی شي، لـيکن دهغوی دتمې اوتوقـع خـلاف امـارت صـف نـه دياغيانوبريـدونو

دامريکايانو خلاف د مقاومت ليکوتـه کـوم ټکـان ورنکـړی شـو برعکس هغوی ټول اسلامي امارت وځپل اودتجمع مرکزونـه يـې ورته ړنګ کړل

دوهمــه لويــه، مجهــزه اومضـبوطه فتنـه دامريکـا اونـورو نړيوالوخـارګرواداروليخوا لـومړی پـه عـراق کـې رامنځتـه کـړی شوه،هلته امريکايانو د شيعه وسني ترمنځ دنفاق تخم په کرلوسره، سنيان اوشيعه ګان په يوه لويه خپلمنځي جګړه کې ښکېل کـړل، چې په سبب يې دواړولوريوته درانه اونه جبراينـدونکي تاوانونـه واوښتل،په خاصه توګه دعراق اوسوريې سنيانوته خودسراومـال له پلوه دومره درانه زيانونه واوښتل چې شايد ترڅولسـيزوبه هـم جبران نشي،څه موده وروسته هغه فتنه دنړيوالوخـارګروادارو پـه مرسته له عراق نه افغانستان ته راوړل شوه،او دلته يې ورته دوه عمده اهداف وټاکل،يودعراق په څيردسنيانواوشيعه ګـانو تـرمنځ ديوې نه پای لرونکې جګړې پيلول،د کـومې لپـاره چـې نـه تنهـا افغانســـتان ډګرګرځـول شـوی و بلکــې دپاکســـتان،ايران پـــه ګـــډون دمرکزي اسياهيوادونه هـم ټاکـل شـوي وو،دوهـم هـــدف دافغانســـتان داســـلامي امـــارت دځواک ځپل اوله منځه وړل ورتــه هــدف غــوره شـوی و،خوداسـلامي امـارت بيدارومشرسانوپه خاصـه توګـه دشـهيد



منصورصيب جرئتمندانه پريکړواومدابرانـه تصـميمونو د نړيوالـو استخباراتو دغه ټول پلانونه شنډاوناکامه کړل،نـه دلتـه دعـراق پشان دسنيانواوشيعه ګانوترمنځ د دښمنيوڅخه ډکه يـوه نـه پـای لرونکې جګړه پيل شوه اونه دافغانستان داسلامي امارت دځواک ځپلو په اړه دنړيوال ښکېلاک ارمانونـه پـوره شـول! دهيـواد پـه ختـيځ (ننګرهـار او دکـونړ ځينـو سـيموکې)اود شـمال لويـديځ

(فاریاب ځینوبرخوکې) کې سرپورته کړ،ورسره دمرکزي اسیاله هیوادوڅخه راغلو مهاجرینوپه یوځای کیدوسربیره دیوخاص مسلک لارویانو په ضم کیدویې دافغانستان اسلامي امارت په مجاهدینو په ضدحملې پیل کړې،اوځیني سیمې یې لاندې کړې،په هغو سیموکې یې په افغان ولس له امریکایانوڅخه هم سخت وحشتونه اوظلمونه وکړل،دافغانستان اسلامي امارت مجاهدین دغه مهال ټول هیوادکې داشغالگرو له منگولوڅخه دهیواد ازادولوپه جهاد بوخت وو،ترڅنگ یې دداعش فتنې په مهارولواوشنډولوکې هم برې ترلاسه کړ،دامارت خلاف دوه طرفه جنگ پیل شوی و یعني دامریکایانواوداعشیانوهم آهنگ اوهمزمان عملیات اوبمباردونه کیدل،چې له امله یې ځینې سیمې داعشیانو ونیوې اوپکې خپلې توري جنډې یې پورته کړې،په دغسې یو جنگي حالت یاوضعیت کې دنړۍ ډیرمنظم نا منظم پوځیان یا جنگیالي هم دمقاومت روحیه له لاسه ورکوي اوجگړه بایلې،جنگیالي یې وسلې غورځوي اوفاتح لوري ته ځانونه تسلیموي،اویا ځانونه دجگړې له ډگره په تیښته وباسي، دمرحوم منصورصیب دفعال، بیداراوجرئتمندانه قیادت په برکت داسلامي امارت مجاهدین نه دجگړې څخه لاس په سر شول اونه (خدای مکړه) داعشیانو،امریکا او کابل رژیم ته تسلیم شول،په کلک پولادي مقاومت سره یې په یووخت کې دامریکا او داعش دواړوخلاف جنگ ته دوام ورکړ، دخوارجو داعشیانو په مرکزونو یې تهجمي عملیاتوپه دوام سره لله الحمد تیرکال ټول هیوادیې دداعشي فتنې له شتون څخه پاک اعلان کړ .

عرض داچې منصور صیب رحمه الله په ډیرنازک اوباریک وخت کې په کامل جرئت اوهمت سره دواړودښمنانو(امریکایانو اوداعش ) پخلاف دجهاد پریکړه وکړه، یقیناً دا یوه لویه فیصله کوونکی تاریخي پریکړه وه،لوی زړه اوهمت یې غوښته،نه یې دداعشیانوپه فشار دامریکا خلاف جگړه تم کړه، اونه یې دامریکایانو پوځي فشار له ډاره داعشیانوخلاف دجهاد کړې پریکړه بیرته واخیسته،هم زمان یې د دواړو خلاف دجهاد اوجگړې ستراتیژۍ تیاره اوعملي کړه، دهغې په نتیجه کې الحمد الله هم داعشي فتنه مهاراوکابوه شوه او هم امریکا د تاریخي اوعبرت ناک شکست سره مخ شوه،چې بالاخر دخبرو اومذاکراتو غوښتې وکړ،دکوموپه ترڅ کې چې دروان ۲۰۲۰ زکال دفبرورۍ په ۲۹مه دقطر په دوحه کې دنړیوالوپه حضورکې داشغال دپای ته رسولوهوکړه په امضاء کولو یې اعلان وکړ چې په ۱۴میاشتوکې به خپل ټول ځواکونه له افغانستان څخه وباسي اوبیا لپاره به دافغانستان په کورنیوچاروکې دلاسوهنې جسارت نکوي.

په حقیقت کې ددې تاریخي بریا اوشانداري سوبې کریډیټ یا امتیاز په ټوله کې دافغانستان اسلامي امارت دموجوده ویښ اومدبر قیادت سربیره مرحوم منصورصیب ته رسي، چاچې په لومړي سرکې د دواړو دښمنانو( امریکا- داعش) پخلاف دجهادتاریخي پریکړه وکړه،او د دواړوپرضد له جنگیدوڅخه ورووسته نشو،حال داچې امریکا اوبهرنیو استخباراتو په گډه داپلان جوړ کړی و، چې دخوارجو- داعشیانو له واردولو وروسته به دوی په دریمه غونډۍ ناست وي،طالبان او داعشیان به یوبل وژني او فقط دوی به داعش ته ترشاه پوځي اکمال رسوي! خواسلامي امارت چې هغه مهال په سرکې یې دمنصورصیب په څیرفعال،بیداراومدبرقاید شتون لاره،داعش یې دیته پرېنښود چې په هیوادکې یې د ځان لپاره ځالې جوړې کړې وی ،اوبیا دهغوځالوڅخه یې ټول هیوادته خپل کرغیړن نفوذ اوشتون غځولی وی، ټول داعش یې د ننگرهار په یوه محدوده سیمه کې کلابندکړ ، دغه مهال اسلامي امارت داسې ماهرانه تاکتیکونه غوره کړل چې امریکایان اوداعشیان دواړه یې جنگ کې ښکېل او مصروف وساتل، دکوم له امله چې هغوی یوبل سره هغسې مرستې ونکړی شوې، چې تمه یې کیده، بالمقابل دمنصورصیب دزیاتې پاملرنې په برکت دافغانستان اسلامي امارت مجاهدین دومره زړوراوغښتلي شول چې دخپلو تهجمي عملیاتوپه مټ یې بسته ولایتونه ونیول،په دې وجه امریکایان

دیته وزګارنشول چې هغوی دټاکلي پلان سره سم داعش تقویه اوټول هیواد ته غځولی وی، هغوی خپله ټوله توانائي دطالبانو دتهجمي بریدونو په مهارولواومخنیوي کې راټوله کړې وه، ځو هغوی دولایتونو دمرکزونو اوښارونو دنیولو څخه لري وساتي، نوهغه ارزوچې امریکااونورونړیوالو استخباراتودداعشیانوتقویه کولوپخاطردرلوده، پوره نشوه او په عملي کولوکې یې ناکام اوپاته راغلل .

هغه وچې چې امریکا اودائتلافي هیوادواستخباراتو په ګډه دمنصورصیب رحمه الله د له منځه وړلو پریکړه وکړه، ځکه هغوی پوهیدل چې دمنصورصیب پاته کیدل،ددوی ټول پوځي موجودیت په وړاندې یوقوي چیلنج دی،او دوی یې په ژوندکې نشي کولی چې په اسانه خپل شوم پلانونه اوبد عزایم تطبیق کړي،هغه و چې دجوزا په لومړی نیټه دکندهار ګلستان ولسوالۍ ته څیرمه دامریکایانولخوا په یوډرون بریدکې یې په شهادت ورساوه،دشهادت سړ پنځه کاله پوره شول،خو کارنامې اوبریاوې یې دافغانانواومسلمانانوپه زړونوکې هغسې ژوندۍ اوتازه دي،نن ورځ په داسې حال کې موږیې پنځم تلین لمانځو چې داسلامي امارت دباتوروااوننګیالیومجاهدینوپه لاس هم داعشیان - خوارج نیست ونابود شوي او هم دهغوی باداران (امریکایان) په تیښته دوتلو حال کې دي دافغانستان اسلامي امارت سره یې په ۱۴ میاشتو کې دخپلوټولو ځواکونو دویستوپه اړه رسمي عهدکړی دی،چې همداشیبې یې دوتلوبهیر جریان لري پای.



## سمع او إطاعت امت ته کامیابي او سعادت ورکوي

خادم آواز ورته وکړ چې أی قتیبه ( قتیبه د لسګونو زره مجاهدینو قمندان او رهبر وو ) قتیبه د قاضي " جمیع " مجلس ته حاضر سو ، قضیه یې د غټ کاهن سره راغلې وه ، قاضي و کاهن ته وویل " څه دعوه لرې أی د سمرقند أو سیدونکې ؟

هغه ورته وویل چې دعوه مې دا ده ( قتیبه بغیر له دي چې موږ ته فرصت او وخت راکړي تر څو چې موږ خپل د ځان په هکله فیصله وکړو ، په ناڅاپي ډول سره د خپل لښکر أو فوځ سره زموږ په ښار راننوت ) قاضي و قتیبه ته مخ ور واړوه او ورته ویې ویل ، أی قتیبه ته څه وایې د سمرقندي په خبره کې ؟ قتیبه ورته وویل چې " الحرب خدعة " جنګ چم ورکول دي دښمن ته ، سمرقند لوی ښار دی ، او شاوخوا یې نور ښارونه هم دي ، ټولو مقاومت وکړ ، نه یې اسلام راوړ او نه یې جزیه قبوله کړه ، قاضي ورته وویل چې تا دوی و اسلام ته او جزیې ته او یا و جنګ ته د مخه راوبلل ؟ قتیبه ورته وویل چې یا ، بلکې ناڅاپه وربانديي ورغلو ، قاضي ورته وویل : أی قتیبه اقرار دي وکړ ، چې کله مدعي علیه اقرار وکړي محاکمه پای ته رسیږي ، ای قتیبه الله جل جلاله ددې أمت نصرت ندی کړی مګر په عدل سره ، دا دین په غدر ندی کامیابه سوی ، بیا قاضي فیصله وکړه چې د مسلمانانو ټول لښکر دې د سمرقند له خاوري ووځي ، یو دې هم نه پاته کیږي تر څو چې مسلمانان خبر ورکړي چې دوی د خپل ځانو په أړه تصمیم ونیسي ، چې اسلام راوړي او که جزیه قبلوي او که جنګ ته تیاریږي.

د سمرقند کاهنانو هیڅ تصدیق ددي فیصلي نه کاوه ، او نه یې ګمان کاوه چې مسلمانان به داسې وکړي ، خو یو څو ساعته نوه تیر سوي چې قاضي او قتیبه او د مسلمانانو لښکر د سمرقند څخه د اسلام د بیرغ سره په سپیره ګردو کې ووتل ، د همدې ورځې لمر نه وو ډوب سوی چې د سمرقند په کوڅو کې بغیر د سپیو د أنګولا بل هیڅ نه اوریدل کیده ، په هر کور کې ژړا أو رول کیده چې د مسلمانانو پر وتلو یې ژړل ، وبالاخره د سمرقند أوسیدونکي د هغه مشر کاهن سره یو ځای د مسلمانانو و معسکر ته ورغله او کلیمه د شهادت یې پر خوله وه ( اشهد ان لاإله إلا الله محمد رسول الله )



# شهيد منصور صاحب

## پخپل شهادت سره امريکايانو ته ستر درس ورکړ!

م عارف

د عاليقدر امير المؤمنين شهيد ملا اخترمحمد منصور تقبله الله د شهادت د څلورم تلين په مناسبت

له نن څخه څلور کاله وړاندې په همدې ورځ د اسلامي امارت پخواني زعيم شهيد اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور رحمه الله د امريکايي اشغالګرو ځواکونو په يوه هوايي بريد کې په شهادت ورسيد.

د هغه شهادت اګر که په لنډ زماني لحاظ د اسلامي امارت په ليکو کې انديښنې را پيدا کړې، خو داچې د اسلامي امارت د کنټرول او صلاحيت لوړه مرجع د اسلامي امارت رهبري شورا وه، نو يې ډير ژر د شهيد منصور صاحب له شهادت څخه را وروسته ټوکيدلې انديښنې رفعه کړې او پرځای يې بل زعيم جناب شيخ صاحب مولوي هبة الله اخندزاده حفظه الله وټاکل شو او د امارت ليکې تر پخوا لا ډيرې پياوړې، منظمې او له ابتکاراتو سره ملې شوې.

د شهيد منصور صاحب شهادت واقعا يوه غميزه وه، خو که په عموم کې نظر وشي په جهادي مبارزو کې شهادتونه تر ټولو لوړ هدف او د بريا هغه ستره څوکه وي.

په بل تعبير له مشره تر کشره هر مبارز او مجاهد له ځانه سره دا هيله او ارزو لري چې د خدای په لاره کې شهيد شي او د الله تعال په لاره کې يې قرباني په نصيب شي.

د منصور صاحب شهادت هم د ده جناب لپاره تر ټولو لويه بريا وه او شهادت يې د الله تعالی په لاره کې يو قبول شوی بنده ورڅخه جوړ کړ.

له شهادت څخه وروسته يې د صف ملګري او تر بيعت لاندې پيروان په دې نه وو خفه چې منصورصاحب ولی خپل تر ټولو لوړ هدف ته ورسيد او بريالی شو؛ بلکې په دې غمجن او خفه وو چې د شهيد منصور صاحب خلا به څرنګه ډکه شي؟ جهادي او امارتي صف ته زيان وارد نشي او خدای مه کړه دا لوی بنيان مرصوص او ستره د عزت او وياړ مانۍ ړنګه او متضرره نشي.

کله چې د منصور صاحب له شهادته وروسته د امارت صف پخپل حال او بلکې لا ډير پياوړی او منظم تبارز وکړ، د منصور صاحب د شهادت له امله رامنځته شوی خفګان رفع شو او مجاهدينو په تسکين سره بيرته خپلو جهادي عملياتو، برياوو او لاسته راوړنو ته مخه کړه.

له پورته بحث څخه جوتولای شو چې د منصور صاحب شهادت د بريا وو کيلي/کونجي وه او دا يې ثابته کړه چې د اسلامي امارت صف د دنيا د ټولو معاصرو جوړښتونو او ايزمونو پرخلاف داسې يو صف دی چې له اميره تر مأموره، له اعلی تر ادنی ټول يې سره برابر او د قربانۍ په روحيه جهاد او مبارزه کوي.

هيڅ فرد يې په بل تفوق نه غواړي؛ بلکې د قربانيو ډګر ته د ورتګ لپاره سيالي سره کوي.

کله چې د اسلام دښمنان په يوه اسلامي صف کې دا ډول صلابت، اراده او پوخ عهد ګوري، نو متزلزل او مايوسه کيږي، په دې فکر کوي چې د دغه صف د ټولو افرادو له منځه وړل ورته ناممکن دي، نو آيا د ځينو افرادو په شهادت رسول يې د دوی شومې هيلې پوره کولای شي؟

بې له شکه چې په داسې حال کې په مقابله کې ولاړ دښمن له يأس او نااميدۍ

سره لاس او ګریوان او پخپله تګلاره بیا غور ته اړ کیږي.

د شهید منصور صاحب له شهادت او را وروسته جریاناتو څخه امریکایي جهت له همدا ډول یوه وضعیت سره مخ شو، دا ورته ښکاره شوه چې له اسلامي امارت سره د معرکې او جګړې له لارې تعامل ورته ګران پریوزي او د دې صف ماتول او محوه کول ورته ناممکن دي، نوبیې څکه عقب نشیني وکړه، هغه طالب چې یو وخت یې مړ غوښت، اوس یې د یوه مطرح او منلي جهت په توګه پیژني.

له امریکا سره په دوحه کې د اشغال د پای ته رسیدو تړون او د امریکایي مشرانو پرلپسې د څواکونو د ایستلو، ماتې منلو او مایوسۍ دریځونه ښکاره کیدل، دا خبره ثابتوي چې اسلامي امارت د قربانیو په برکت او د جهاد په لاره کې د ثبات، برداشت، تعهد او ستر ایثار له امله خپل مقابل جهت ته ماتې ورکړه او هغوی یې د جګړې د میدان پریښودلوته اړ کړل.

د انساني تاریخونو په ټولو جګړو کې داسې هیڅ نه دي پیښ شوي چې یو جهت بل جهت بالکلیة محوه اونابود کړي، خو ماتې هغه مهال مینځته راځي چې یو جهت د ډیرو ځپلو، مایوسۍ او وارخطایۍ له امله میدان پریږدي او له جګړې لاسه واخلي.

دانو هغه وخت دی چې که څوک وغواړي یانه، دوهم جهت بریالی بلل کیږي او تښتیدلي جهت ته خلک مات شوی وایي.

په افغانستان کې هم کیسه همداسې ده، دلته امریکا بشپړه نه ده محوه شوې؛ بلکې اراده یې ماته شوه، مایوسه شوه او نور یې د جنګ د دوام حوصله او انرژي له لاسه ورکړل.

دغه حالت ته د دښمن را رسیدل له دې امله و چې د اسلامي امارت صلابت او ټینګتیا له هغه څه ډیر لوړ وو چې دښمن یې فکر کړی وو.

د امریکا او ورسره اشر بانو په ماتې کې د زرګونو نورو شهیدانو ترڅنګ د منصور صاحب شهادت ستر او کلیدي رول درلود.

څکه د هغه له شهادت سره دا ښکاره شوه چې دا صف ډیره لوړه حوصله او برداشت لري، داصف د ډیرو کلکو خلکو څخه جوړ شوی، دا صف ډیر پیاوړی او منظم دی، رهبري یې له داسې خلکو څخه جوړه ده چې د خپلو آرمانونو د تحقق په لاره کې ځانونه اورته اچوي خو تغیر، ماتې او مایوسي نه مني.

په دې توګه نو شهید منصور صاحب پخپله قربانۍ سره امریکا او ټولنې نړۍ ته د اسلامي امارت د حقانیت او قوت ثبوت وړاندې کړ او شهادت یې امریکایي اشغالګروته معکوسه نتیجه ورکړه، څکه هغوی غوښتل چې د منصور صاحب په شهادت سره دا واحد صف ټوټې ټوټې او سره وپاشي، خو چې ونشوه نو لینګې یې سست شول او د جګړې او میدان د پریښودو پریکړه یې وکړه.






# منصــــور؛

## رهبــری از دلِ سیاست و مبارزه

(به مناسبت چهارمین سالیاد شهادت عالیقدر منصور صاحب تقبله‌الله)

یاد و خاطره‌اش را در حالی زنده نگه می‌داریم که هنوز درد فقدانش تازه است؛ عالیقدر امیرالمومنین شهید تقبله‌الله در تکاپوی عزت اسلام و سربلندی مسلمانان از جانش مایه گذاشت و عمر گرانبهای خویش را فدای دین مقدس اسلام نمود او تا لحظهٔ اخیر زندگی در حرکت و فعالیت بود؛ هر کسی نامش را شنید و از تلاش و کوشش او خبر شد مثل ابر بهاران در غمش اشک باریده و برایش از رب متعال بهترین‌های آخرت را آرزو کرد.

منصور رهبر خردمندی بود که بدون اغراق برای رهبریت امارت اسلامی و قافلهٔ جهاد معاصر شخصیتی کم نظیر بوده، و بی‌تردید یک غنیمت و چانس طلایی بود؛ او خردمندانه جهاد معاصر را به پیش برده و رهبریت می‌کرد از مخالفتِ مخالفان و از ملامت ملامت‌گران خوفی به دل راه نداده و جز حق از کسی ترس و هراس نداشت.

چیدمان سیاسی و ترکیب رهبری منصور در شناخت افراد کلیدی امارت اسلامی و جابجایی آنها در وظایف مختلف، فراخ بخشی تشکیلات امارت اسلامی، توجه به ظرفیت و نیازهای زمانی، مشوره‌طلبی درامور جهادی با اهل خبره، توجه و احترام عمیق به علماء و مشایخ دینی، دلسوزی غیرقابل وصف او در دلسوزی ملت و مظلومیت افغانستان تنها صفات معدود از صفات نیک و خصال برجستهٔ آن رادمرد راه راستین بود.

شهید امیرالمومنین لحظهٔ آرام و قرار نداشت وقتی می‌دید ملت مظلوم‌اش زیر بمباران شدید متجاوزین و قوت‌های خارجی و ایادی اجیر آنها قرار دارد، درد ملت را کاملا درک و از غم‌شان لحظهٔ غافل نبود، دنیا و آسایش آن را بوسیده در طاق بلند گذاشته بود و هَم و غمش دین، ملت، آزادی سرزمین افغانستان از چنگ اشغال بوده و در این راه، فراوان قربانی‌ها را با جان و دل خرید.

شهید امیرالمومنین در صبر و حوصله کم‌نظیر بود هیچگاهی به خاطر شخص خود از کسی آزرده نمی‌شد، هزاران سخن نقد و نصیحت را از آحاد ملت، علماء و مجاهدین با صبر و حوصلهٔ مثال زدنی می‌شنید و تنها دغدغه‌اش آسودگی ملت عزیز و کسب رضای خداوند متعال بود؛ او با مستمندان ملت بسیار شفقت داشته و رهبری فرزانه و به حق دلسوز بود و از هیچ تلاشی در دور کردن غبار غم از رخسار هموطنان خود دریغ نمی‌کرد.

شهید امیرالمومنین هدف اصلی دشمنان صلیبی را به درستی درک کرده بود که چرا در افغانستان اینهمه جنگ و خونریزی به راه انداخته و چرا در تداوم تجاوز اصرار دارند، او با دل پر غم می دید که چگونه یک مشت خاین و وطنفروش همه چیز و ارزش‌های فاخر ملت افغانستان را بی‌محابا به فروش گذاشته و چگونه با آبروی ملت عزیز بازی کرده و چگونه به اسم ملت فاجعه خلق کرده و چگونه به خاطر خوش‌رضایتی کفار، خون هموطنان مظلوم خود را ناحق ریختانده و می‌دید عده‌ای فریب‌خورده چگونه در صف ظالمین مددگار ظلم شده اند.

شهید منصور صاحب مجبوریت‌های ملت مستضعف خود را کاملا احساس می کرد و شب و روز در تلاش بود تا بحران جنگ در افغانستان ختم شده و صلح و آرامش فضای کشور را آکنده از خوشی و صمیمت کند.

شهید امیرالمومنین بر خلاف تبلیغات زهرآگین دشمن که مدام چشم پیروزیهای روزافزون قافلهٔ امارت اسلامی به رهبری وی را نداشته و همواره مثل خار در چشم مخالفان بود؛ اما چون با خدایش روراست و با ملت خود وفا و عهد دوستی داشت و با سرزمین خود محبت قلبی داشته و از رنج و درد ملت خود کاملا آگاه بود، از زیر بارِ خروارها تبلیغات

منفی دشمنان همواره سرخرو و سربلند برآمده و چون افق نگاهش فراتر از مادیات و منافع دنیا را می‌دید بدون توجه به قیل و قال و دروغ و تهمت‌های دشمنان دست از مبارزهٔ برحق خود نکشیده بلکه هربار قوی‌تر، با نشاطتر و خیلی سرحال تر از گذشته به مسئولیت‌های خطیر جهادی پرداخته و همواره مجاهدین را نسبت به ملت مظلوم افغانستان، آیندهٔ با عزت فرزندان کشور و نجات کشور از بحران‌های مصیبت‌بار توصیه به خیر کرده و فرمان به نیکی می داد.

حقیقتا باید گفت المیهٔ شهادت عالیقدر امیرالمومنین منصور ضایعهٔ جبران ناپذیر بوده و خبر دردناک شهادت آن بزرگمرد به شمول ملت مجاهد و غیور افغان، تمام مسلمانان مظلوم در کش ورهای کفر و اسلام از شرق گرفته تا غرب و از جنوب گرفته تا شمال را آزرده خاطر کرد و نسبت به حادثهٔ دردناک شهادت‌اش همگان ناخوش شده و مثل بدن کباب شدهٔ منصور هر کسی که عالیقدر امیرالمومنین منصور صاحب شهید را به درستی می‌شناخت کباب شده و واقعا در غم ایشان سوختند.

خداوند متعال جنت‌الفردوس را نصیب آن رادمرد گردانیده که واقعا اکنون در طلوع آفتاب آزادی و دمیدن خجسته بهار عزت، جای ایشان مثل بسیاری از شهدای والا مقام امارت اسلامی خالی است.

روح‌شان شاد، جایشان بهشت، و راه‌شان پر رهرو باد.



# شهادت واژه مقدس است...

رحمت الله فطرت

شهادت واژه مقدسی است که مصداق آن بر هرگرکسی درست نیست، شهادت ثمره ای والای هدف مند وآرزوی مقدس یک مجاهد است، مجاهد در سنگر جهاد دو آرمان مقدس دارد، که هردو، آرمان مقدس است، شهادت یا سرفرازی در برابر دشمن، شهادت تنها واژه ای نیست که از چند حروف ترتیب وتدوین گردد بلکه شهادت از آرمان والای مقدس ونیت نیک سرچشمه میگیرد، مجاهد بخاطر اعلای کلمه الله واهتزاز درفش عزت اسلامی باهدیه خون شهادت راکسب میکند، شهادت لقب اعزازی ملی وقومی نیست، تابالای هرکسی مطابق میل خود بخاطر بلندبردن شان وترفیع منزلت شخصی نامیده شود، بلکه شهادت یک ارزش اسلامی است که با اهدای خون در راه الله توام بانیت نیک واخلاص درست به دست می آید، ما در کشوری زندگی میکنیم که همه چیز برخواسته از ارزش ها نیست بلکه ارزش ها تابع امیال ماست.

شهادت سمت نظامی ویا موقف پوشالی حکومتی نیست تا حمدالله محب، امرالله صالح وامثال آن در تعریف شهادت وشهید نقش ایفا نموده به هرکفتار لاشه خوار این لقب اعزازی وسمت حکومتی را اعطانمایند!

شهادت نه باپول معامله میشود، ونه ازطرف افرادواشخاص این لقب دینی تفویض میگردد، بلکه شهادت نتیجه معامله خون است، مشتری شهادت مجاهد وبایع آن الله متعال است.

درافغانستان باهرچه بازی شده حتی با ارزش ها، ارزش ها در افغانستان دانه بازی شطرنج سیاسیون دین ستیزودین فروش است که در وقت نیازمندی هرچه دل شان خواست به هرکس لقب مقدس میدهند.

وقتی نجیب کمونیست، کارمل، حفیظ الله امین، ترکی و... شهید باشد هیچ کسی در افغانستان خودمرده نیست.

# شهید منصور رحمه الله

## د قربانۍ په اوج کې

قاري عبدالستار سعید

په هره ټولنه او فرهنګي حوزه کې د انسانانو لپاره د شرف او لوړتیا ځانګړي معیارونه شتون لري، چې د هغو په اساس د افرادو تول کیږي او مقام یې تشخیص کیږي. په اسلامي ټولنه کې دغه معیارونه زموږ دیني معتقدات دي. په اسلامي قاموس کې یو مسلمان په دې ترازو وزن کیږي چې له خپل رب جل جلاله سره څومره مینه لري؟ د خپل پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره د عشق او محبت ګراف یې څومره دی؟ د خپل دین اسلام د ساتنې او لوړتیا لپاره تر کومه حده قربانۍ ته حاضر دی؟ او بالاخره کله چې د ایثار صحنه راځي تر کومه حده خپل عشق ثابتولی شي.

له خپل محبوب او معتقد بها سره مینه او محبت هغه څه دی چې د عاشق اصلي توښه بلل کیږي. څومره چې دغه مینه زیاته وي، اورنۍ وي، هیجاني وي او خارق العاده وي همدومره د مینې د لاروي په اصالت او کمال دلالت کوي.

د مینې د کمال بیلابیل مراتب د خلکو تر منځ شهرت لري. په عربي ادب کې د وامق او عذراء مینه، په هندي فرهنګ کې د هیر او رانجا محبت او په عام اسلامي ادب کې د مجنون او لیلا عشق هغه افسانې دي چې د پیړیو له تیریدو وروسته لا هم زموږ د شاعرانو پر ژبو دي. خو په دې عاشقانو کې یو هم داسې نشته چې د خپل معشوق لپاره یې ځان په اور لولپه کړی وي.

په عام عرف کې له ګل سره د بلبل مینه هم اورنۍ مینه بلل کیږي. ځکه بلبل د ګل دیدن ته د اغزو په څوکو ورځي او خپله سینه په هغو اغزو زخمي کوي چې الله تعالی د دې لطیف موجود( ګل) د حفاظت لپاره د هغه په شاوخوا راګرځولي وي.

اما یو بل درد شته چې تر زخمي کیدلو په مراتبو سخت دی او هغه د بدن په اور سوځیدل دي. په همدې اساس خو د عشق نهایي مرتبه هغه ټاکل شوې، کله چې عاشق د خپل محبوب لپاره ځان په اور وسوځوي. په همدې اساس خو شاعران پتنګ یا پروانه هغه عاشق بولي چې د عشق وروستنۍ مرحله یې طی کړې ده.

نه هر خامی ز پایان شب عاشق خبر دارد<br>
که فصل آخر این قصّه را پروانه می‌داند

پتنګ یا پروانه هغه یوازینی عاشق دی چې خپل معشوق ( شمعې) ته د رسیدلو لپاره ځان په اور سوځوي، خو له سوځیدو سره سره یې هیڅ فریاد هم نه پورته کیږي. په همدې اساس خو د پتنګ عشق تر بلبل ډیر اصیل او لوړ ګڼل کیږي. شاعر وایي:

نالیدن بلبل ز نوآموزی عشق است<br>
هرگز نشنیدیم ز پروانه صدایی

د فارسي ادب لوی شاعر شیخ سعدي هم بلبل ته نصیحت کړی چې عشق دې له پتنګه زده کړي.

ای مرغ سحر عشق ز پروانه بیاموز<br>
کان سوخته را جان شد و آواز نیامد

ایــن مــدّعیان در طلــبش بی‌خبراننـــد
کـآنرا کـه خـبر شـد خـبری بـاز نیامـد
خو تاسو به وایاسـت، چـې انسـان خـو اشرف المخلوقات دی او دالله تعـالی پـه ټـول مخلـوق کـې برتـر او مخـکښ موجود دی، نو بیا څرنګـه امکـان لـري چې د پتنګ په شان یو کوچنی مخلـوق دې د عشق او مینې په شان په یوه عمده موضوع کې له انسانه سبقت وکړي؟ آیا پتنګ واقعـا پـه یـوازې سر د مینـې تـر ټولو دنګه څوکه فتحه کـړې او پـه دې کارنامه کې یوازې دی؟؟

ځواب دا دی چې نه هیڅکله نـه؟ که افسـانوي عاشـقانو لکـه مجنـون او وامق د پتنګ مقام ته ځان ونـه رسـاوه، اما دالله تعـالی د لارې داسـې دلسـوخته عاشقان شته چې د پتنګ غونـدې یـې د دین په مینه ځانونه لولپه کړل او پـه دې ډول یې د قربانۍ، ایثار او فداکارۍ تـر ټولو دنګ مینار فتحه کړ.

د نړیوال صلیبي یرغل پـه وړانـدې زمـوږ اتلـس کلـن جهـاد یـوازې د متقـابلو اړخونـو د نامتوازنو امکاناتو له امله بې سارې واقعه نه وه، بلکې په دې جهاد کـې د (استشـهاد) کارنامـه د قربانۍ هغه نمونه وه چې تر دې لوړ د عشق او ایثار د کومې مرتبې تصور نه شي کیدلای.

په دې سربیره کله چې د جهادي صف زعیم او مشر همداسې قربانۍ ته امادګي ښیي، نو د اخلاص او فداکارۍ وروستنی حـد ګڼـل کیـدای شي. لـوی عـالم او مـدرس مولـوي عبدالبصیر صاحب حکایت کوي چې یو وخت مې شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمدمنصور صاحب تـه د فدایانو عرائض او شکایات ورسول. شهیدمنصور صاحب راتهوویل چې فدایانو تـه داډ ورکـړه چې که مې ستاسو په شان ځان په دین لولپه نه کړ نو بیا مې مه منئ.

هو کې، هغه رښتیا ویل: هغه واقعا ځان همداسې په دین لولپه کړ.

د اسلامي امارت د رهبرۍ شورې غړي او د مشرتابه دفتر رئیس جناب متقي صاحب چې د شهید منصور صاحب جسد یې لیدلی و، راتـه وویـل چـې د شـهید منصـور صـاحب بـدن داسـې سوځېدلی و چې د بدن پوستکی یې تور سکور ګرځېدلی و او پیژندل یې سخت و. کله مې چې د ده دا حالت ولید له ځان سره مې وویل چې تر دې نو زیاته قربـاني نشـته. کـه څـوک غـواړي واقعا د الله تعالی په لاره کې ځان قربان کړي هغه نو باید داسې قرباني ورکړي.

واقعا! د اسلامي امارت زعیم شهید ملا اختر محمد منصـور صـاحب لـه خپـل دیـن سره د مینې او ژمنتیا هغه ثبوت وړاندې کړ چې هیڅوک تـرې انکـار نـه شي کـولای. نومـوړي داسـې قرباني ورکړه چې تر هغه پورته قرباني متصوره نه ده.

نو شهید امیره! درویاړو! او د قربانۍ اوج ته د رسیدو مبارکي درکوو.

رب دې سوځېدلی وجود وبښه! آمین

# جزیره که تنها دوصد نفر زندگی میکنند...



جزیره اګوشیما متعلق به مجمع الجزایز جاپان کـه در آن تنهـا دوصـد نفربـدون حیوانات زندگی میکند، مردم از ګیاهـان طبیعـی وبـرګ درخـت بـه عنـوان مـواد خوراکی استفاده می‌کنند.

این جزیره به عنوان نماد قدرت الهی در روی زمین است، اګـر عقـل سـلیمی بـا سلامت وتندرستی به آن نګاه کنـد وحـدانیت خـدا وقـدرت الهـی را در خواهـد یافت، که الله متعال چدر ذات مقتدر وتوانمند است؟ در میان بحر انبوه جزیـره سبزی را خلق کرده است وباشندګان آن را از برګ درختان تغذیه میکنـد وآن رزق را که خودش تضمین نموده است اعطا میکنداما ما انسان ها هستیم که بـه جـای تفکر عقلانی واندیشیدن نګاه‌های سر سری داریم، بـه جـای تصـدیق حقـایق بـه تصورات بی نتیجه اکتفا میکنیم.

مرکه کوونکی: خبیر احمد مجاهد

# د هیواد له نامتو عالم نمونهٔ اسلاف جناب

# مولوي نظرګل صاحب -د امت برکاته- سره مرکه

جناب مولوی صاحب!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

وبعد! د افغنستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون په پام کې لري، تر څو د هیواد له نومیالیو علماء کرامو او مشایخو سره علمي، جهادي او هر اړخیزې مرکې وکړي، تر څو چې نوی نسل او ځوان قشر ترینه ګټه ترلاسه کړي او د خپلو اسلافو له افکارو، صفاتو، کردار سره اشنا شي.

د دغو مرکو لړۍ جاري ده، چې له تاسو سره دا ځل مرکه هم ددې لړۍ یوه کړۍ ده. هیله ده چې د څرک دمینه والو اذهان په خپلو ذرینو خیالاتو او علمي ویناوو مزین کړئ.

**لومړۍ پوښتنه: جناب مولوی صاحب! ستاسو شهرت ، علمي مقام او جهادي ژوند هر چاته ښکاره دی، خو بیا هم دمرکې د دود او دستور په اساس که لطف وکړئ او د څرک مجلې لوستونکو ته ځان معرفي کړئ، ښیګړه به مو وي.**

جواب: د افغنستان اسلامي امارت د فرهنګي چارو د کمیسون ټولو محترمو مشرانو، کشرانو او ټولو کارکونکو او عامو لوستونکو او کتونکو ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

وبعد اولاً د څرک مجلې د مسئولینو ډیره شکریه ادا کوم چې زه یې هم د هیواد د علماء په لیست کې شامل کړم دا دوی حسن ظن ده الله ج دې مونږ په حقیقي علماوو کې شمار کړي

زه مولوي نظرګل د حاجي صاحب قلم الدین زوئ د حاجي صاحب محمد امین لمسی د لوګر ولایت د محمدآغې ولسوالۍ د مغل خیلو د کلي اوسیدونکی یم او د خپل عمر ۷۲ پسرلی شمارم

**دوهمه پوښتنه: جناب مولوی صاحب! د خپلو زده کړو په باب که رڼا واچوئ چې مروجه دودیز فنون مو چیرته لوستي، په ځانګړې توګه د لوړو زده کړو یعنې موقوف علیه (وړه دوره) او لویې دورې په باب مو راته وواياست چې چیرته او له کومو استادانو مو لوړې زده کړې وکړې؟ او هم که لطف وکړئ او دخپلو یو څو هغو استادانو نومونه راته بیان کړئ چې زیات فیض اوپوهه مو ترینه ترلاسه کړې ده؟**

جواب:محترمو ستاسو ته به معلومه وي چې افغنستان کې سابقه درسونه په شخصي او انفرادي توګه وو، فنون مې په مختلفو استادانو ویلي بعضې معتمد فنون او د تکمیلي کتابونه مې له دغو محترمو استادانو څخه ویلي دي مرحوم شیخ الحدیث فقیرمحمد نورالله مرقده چې د لوګر مرکز د پادخواب شانه د کلي ؤ او الحاج عبدالحلیم صاحب نورالله مرقده چې په سرسنګ اخندذاده صاحب سره مشهور وو اصلي دلوګر مرکز د شمک د قلعه ؤ او بل مرحوم حاجي صاحب محمدصادق نورالله مرقده چې اصلي د غزني د شلګر وو او د لوګر په محمدآغې ولسوالۍ کې د محمداغې په کلي کې مدرس او امام وو او د محمداغې حاجي صاحب باندې مشهور وو او بل شهید مولوي صاحب علم ګل نورالله مرقده چې د لوګر مرکز پادخواب د کلي اوسیدونکی وو مشهور استادان مې دغه وو او موقوف علیه (وړه دوره) مې له شهید ګمنام مولوي فضل الحق اخندذاده صاحب مشهور په ملاحسن قلعه اخندذاده سره ؤ اصلي د لوګر محمدآغې ولسوالۍ د کُلي د کلي ؤ او په ابتدأ د خلق او پرچم کې امیر د ولایتي هم ؤ سره وکړه.

او لویه دوره مې له الحاج شهید مولانا محمداسلم صاحب رحمه الله باندې کړې ده چې مرحوم د غزني ولایت د ناوې ولسوالۍ د سره کلي ؤ د لوې دورې ابتدأ مو په کابل سرچوک کې د کوهیستان د حضرت صاحب په څلورمنزله جومات کې شروع کړه، خو بیا د ښار له ژونده طالبان او استادان ډیر په تنګ شول وجه یې داوه چې دښار منځ وو د زیات شور له وجهې طالبانو او استادانو مطالعه نشوه کولی شیخ صاحب محترم مې راته وویل چې په اطرافو کې ځای پیدا کړه پسرلی له کابل نه ځم

جناب شیخ القرآن والحدیث میرصاحب د مغل خیلو او شیخ القران والحدیث جناب فضل الحق اخندذاده صاحب د لوګر ولایت مرکز پادخواب شانه کلي کې د شاهي بیالې د سرک په غاړه نوې مدرسه تأسیس کړه یو کال مخکې به فضل الحق اخندذاده صاحب له کلنګاره د درس له پاره ورته راته د مدرسې د اهتمام چارې یې شهید مولوي محمدنبي چې د لوګر د پاتخواب د سیمې اوسیدونکی وو ورته سپارلې وې زه ورته راغلم حال مې ورته بیان کړ چې مکمله دوره استادان او شاګردان زه درته راولم که ته یې اداره کولی شې او شیخ صاحب تنخوا هم نه غواړي حتیٰ مستقل خوراک هم نه غواړي نو مهتمم ډیر خوشحاله شو او دې کارته حاضر شو د ژمي په تیریدو سره پسرلی تول د پاتخواب شانې کلي مدرسې ته راغلو تر منې پورې مو لویه دوره په ډیره خوشحالۍ سره سر ته ورسوله.

**دریمه پوښتنه: داسې مو اوریدلي دي چې جناب شیخ المشایخ ارواښاد میرصاحب عبدالستار جان (دمغل خیلو میر صاحب رحمة الله علیه) چې دخپل وخت لوی ولي او نومیالی عالم ؤ، له تا سره یې بې سارې مینه او زیات شفقت درلود، که ددې رمز او راز راته وواياست او هم د ارواښاد میر صاحب (رحمه الله) دعلمي، روحاني او اجتماعي شخصیت په اړه خپل یاداشتونه راته په ګوته کړئ، نو دا به له ځوان کهول او معاصرو علماؤ سره ستاسو شفقت وي، تر څو چې دوی هم د خپلو اسلافو له سیرت او حالاتو نه خبر شي.**

جواب:د مغل خیلو میر صاحب رحمه الله باره کې به دومره ووایم چې د خپل وخت لوی ولي او عالم وو ماسره یې د زیاتې مینې راز دا وو چې زما ورسره تعلق زیات وو زه به یې په خدمت کې ډیر حاضریدم په ما یې چې څومره شفقت کاوو مابه یې هغومره ډیر عزت کاوو یوه ورځ یې راته ویل چې راشه جلالین او دا نور کتابونه په شوق درته ووایم ما ورته وویل جناب ته زمونږ په کلي کې یې زه چې له تاسره په جومات کې درس وایم او پلار او ورونه مې چې کار کوي ماته په مسجد کې طاقت نه راځي دوعا راته وکړه بیا به یې ډیرې دوعاګانې راته کولې.

جناب میرصاحب ډیر لوی ولي د وخت ؤ اجتماعي جنبه یې ډیره بیساري وه، د ظاهرشاه د واکمنۍ په مهال په افغانستان کې عموماً د روسانو نفوس په زیاتیدو وو حتی په اوردو کې یې ظابطان او په فارلمان کې وکیلان هم نظره پیدا کړل کله چې د روسانو پلویان ډیر شول نو جناب میرصاحب د لوګر خاص څو کسان بافکره او د وردګو دولایت عبدالرب اخندذاده صاحب د غزني او د قندهار ډیر په راز پوی باتجربه علماءکرامو سره ډیر په مخفي توګه مشوره وکړه چې باید پر ولایت او ولسوالیو کې جید علماء کرام کاندیدان کړو او په پراخه کچه ورته کامپاین وکړو چې فارلمان ته کامیاب شي تر څو د روسانو مخه په فارلمان کې هم ونیسو هماغه وو چې له لوګره هم مخکښ علماء کاندیدان شول خپلو علماوو کاندیدانو ته میرصاحب پخپله هم په پراخه کچه کامپاین وکړ د میرصاحب د کامپاین برکت وو چې له لوګره مولوي صاحب محمدنبي محمدي او مولوي صاحب سیداکبر دلاور فارلمان ته کامیاب شول

د کامپاین په جریان کې میرصاحب سره دوه نفره د لوګر د څرخ ولسوالۍ څخه خروار(اسلام دره)ولسوالۍ ته روان شول بره د کوتل په سرک مخالفینو(دخلقیانوپلویان) په یو لوی کمر باندې سرک بند کړی ؤ تر څو میرصاحب خپلو علماوو ته کمپآین ونکړي ځکه د میرصاحب رسوخ په ولس کې زیات وو مخالفین په دې پوهیدل چې ولس د میرصاحب له خبرې نه تیریګي په خپل تول توان یې کوشش کاوو تر څو میرصاحب د کامپاین مخه ونیسي یو عالم ملګري یې وایي موټر مو بند شو میرصاحب جناب پکې ناست ؤ مونږ ورته کته شولو چې هر څه خواري مو وکړه کمر ونه ښورید جناب میرصاحب په اسماءالله اذکارو مصروف ؤ راښکته شو سفینه چپنه یې اغوستې وه چپنه یې قت کړه او په تیره یې کېښوده دواړه لاسونه مبارک یې له کمرنه لاندې کړل او مونږ ته یې غږ ونکړ دالله اکبر په ویلو سره یې کمر د سرک غاړې ته کړ او لاره خلاصه شوه مونږ تول حیران شولو میرصاحب هم نور څه ونه ویل او لاړو خروار ته.

او بله واقعه د مبارک داسې وه چې کله د ظاهرشاه د حکومت په خلاف د علماوو مظاهرې شروع شوې د کابل پل خشتي جومات کې ډېر زيات شمير خلک راټول شوي و حتیٰ د ننګرهار، لغمان څخه هم هم لوی لوی بستونه راغلي ؤ صبغت الله مجددي او اخوانيانو د مظاهرو سرپرستي شروع کړه او مظاهره په سياسي طرف لاړه جناب ميرصاحب په مظاهره ناراضه او خفه شو ځکه چې د مظاهرې د کوم هدف په خاطر شروع شوې وې هغه مو له لاسه ورکړې وو او صبغت الله مجددي او اخوانيانو سياسي رنګ ورکړ، د پل خشتي دوهم چت کې ميرصاحب بعضې د راز علماء کينول زه هم د ميرصاحب په غوښتنه په مجلس کې حاضر شوم جناب مير صاحب د مظاهرې منفي جوانب بيان کړل هغوی قناعت وکړ فيصله داسې وشوه چې مارشال شاولي خان چې د سردار داؤد تره ده هغه ته به ورشو يو دوه مادې به پرې ومنو او مظاهره به رخصت کړو مونږ ته به دا ګټه په لاس راشي چې زور او دبدبه به مو باقي پاتې شي په دغه خبره اتفاق وشو جناب ميرصاحب او درې نفره نورعلماء شاولي خان ته ولاړل او شاولي خان ورسره مادې ونه منلې جناب ميرصاحب ډېر جلالي ورنه جګ شو او شاولي خان يې له نکټايي څخه ونيو او ټکان يې ورکړ ورته يې وويل چې دغسې به دې په ورځ د قيامت د خپل جد(نيکه) په مخ کې له ستونې نيسم جد(نيکه) کې يې اشاره وه حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ځکه مير صاحب سيد وو، شاولي خان د ډېر هيبت او وېرې له وجهې چپ ودريد کوم عکس العمل يې ونکړ او ميرصاحب او ملګري يې ورنه را ووتل.

او بل د مير صاحب دا عادت ؤ چې کله به لوګر ولايت ته نوی والي راغی نو ميرصاحب به مبارکي ته ورغی او د لوګر د علماوو او مدارسو په اړه به يې معلومات ورکړل او د لوګر د مجاهد او متدين ولس په اړه به يې تفصيلي خبر ورکړ تر څو نوی والي دلته د علماوو او مدارسو په عاداتو پوی او آګاه شي او ميرصاحب به خپله همکاري ورسره ښکاره کړه نو هغوی به زيات متاثره شول

**څلورمه پوښتنه: جناب شيخ صيب دخپلې تدريسي لړۍ په هکله مو معلومات راکړئ او دا راته ووایاست چې ديوه فارغ عالم لپاره تدريس څومره حياتي ارزښت لري اوستاسې له انده يوه مدرس عالم بايدکومې ځانګړتياوې ولري؟**

جواب: محترمو د تاسو د پوښتنې په ځواب کې به دومره ووايم چې ماسره د دوره حديث په کال هم تر ديارلس نفره طالبانو پورې ول چې درس مې ورکاؤ پس له فراغته د لوګر ولايت د مرکز د کمالخيلو د ټول کلي امامت زما ؤ، زمونږ په وخت کې رواج داسې وو چې يو مدرس به د يو کلي امامت ونيو نو په دغه کلي کې به چې څومره جوماتو نه ول د هغو امامت به ټول ددغه مدرس په غاړه وو بيا عادت داسې وو چې دغه مدرس سره به طالبان اوسيدل او هغوی د امامت په چارو کې به يې له خپل اوستاد سره مرسته کوله او درس ته به دغه مدرس امام ته راتلل، نو د کمالخيلو کلي تقريبا اته جوماته امامت ؤ طالبانو به لمنځونه ورکول او درس ته به زما مسجد ته راتلل، زه له هرې خوا درس ته فارغه وم زياتې خوارۍ به مې په درس او مطالعه کې کولې شوق زيات راسره ؤ حتیٰ دسهار له اذانه ورسته تر جمع پورې به مې يو کتاب درس کاؤ بيا ورسته د سهار له لمانځه بيا آن تر ماسپښن لمانځه پورې به د درس لړۍ جاري وه، په اول کال راسره څه د صرفو کتابونه په نحوه کې کافيه، جامي په منطقو کې تر مرزا قطبي پورې او همداسې د فقه څه کتابونه څه د اصول فقه کتابونه لکه نورالانوار دا کتابونه راسره ول.

څه موده ورسته په سردار داؤد خان باندې خلقيانو کودتاه وکړه حالات بدليدل د ملاحسن قلعه اخندذاده صاحب په سرپرستۍ لوګر کې خفيه جهادي هڅې شروع شوې زه يې له مرکز او مِحوَر د جهاد چې قلعه جواد ؤ رابط وټاکلم روزانه به تلم او راتلم تر څو په ولايت لوګر حمله وشوه او د جهاد غرړ پورته شو درسونه پاتې شول الله ﷻ دې قبول کړي.

تدريس د يو فارغ عالم لپاره خپل هدف او مقصد ته رسيدل او ښکاره غټه کاميابي ده، ما پخپل ابتدائي حالت کې له خان، ملک او دنياوالو نه هيڅ طمع نه کوله د علم په وجه مې پر دوی ځان لوړ باله او ټولو راته احترام درلود، خو شرط په کې استغناء عمل او مصروفيت په خپل علم ده هر فارغ عالم بايد استغناء العمل ولري الله ﷻ به ډېر عزت او وقار ورپه برخه کړي.

**پنځمه پوښتنه: ستاسې دطالبۍ په دوران کې په لوګر ولايت کې مشهور درسونه کوم ؤ او د کومو عالمانو نومونه دخلکو په خولو کې ؤ؟**

جواب: محترمه ستاسو د پوښتنې په ځواب کې به دومره ووايم چې په لوګر کې زمونږ په وخت کې جناب ميرصاحب د مغل خيلو کلي کې، حاجي صاحب فقيرمحمد د محمدآغې په کلي کې، دسهاکو اخندذاده جناب محمدنبي صاحب، جناب عبدالحليم د سرسنګ اخندذاده

صاحب، د څرخ مولوي صاحب جناب محمددين صاحب، جناب محمد نبي د عباس د کلا اخندذاده صاحب، شیخ صاحب قدوس جان، الحاج محمدصادق صاحب، الحاج مولوي صاحب سیداکبردلاور، الحاج فضل الحق ملاحسن قلعه اخندذاده صاحب، مولوي محمدنعیم کوڼ اخندذاده صاحب، الحاج مولوي صاحب علم گل، الحاج مولوي صاحب محمدایوب، الحاج مولوي صاحب دورمحمد د دادوخیلو د کلي، دا هغه اشخاص وو چې زمونږ په وخت کې په لوگر کې مشهور او معروف ول.

**شپږمه پوښتنه: جناب شیخ صاحب دهرمدرس خپل تفردات وي او هر عالم ځوانانو طالبانو ته مختلفې توصیې کوي، نو ستاسو په اند باید یو طالب العلم کومې نکتې دخپلې زده کړې په وخت په پام کې ولري؟**

جواب: محترمه هر طالب العلم باید ابتداً هغه مدرس استاد غوره کړي چې پوه عامل، مخلص او په زدکړه د شاگردانو کې حریص وي له داسې استادانو ډیره ښه استفاده کیدلی شي، طالب باید له استاد نه مخکې ځان په مطالعه باندې ښه پوی کړي او دا ځانته معلومه کړي چې په کوم ځای پوی او په کوم ځای پوی نشوم مطالعه ځکه طالب ته مفیده ده چې د استاد په درس باندې بیا ښه په اسانه سره پوهیدلی شي او بل طالب باید خپل قیمتي وخت په عبث مجلسونو خصوصاً په حاضر وخت کې له موبایلو څخه ځان ډیر وساتي په اوس وخت کې په عموم کې چې علمي سویو ته صدمه رسولې هغه موبایل بللی شو هر طالب باید له موبایل نه اجتناب وکړي.

**اوومه پوښتنه : ستاسې دطالبی په دور کې دمنکراتو په مخنیوي او دټولني په اصلاح کې دعلماوو کردار څومره رول درلود؟ آیا ولس ورسره همکاري کوله او څومره ورسره همغږی ؤ؟**

جواب:محترمه زمونږ د طالبی په دَوره کې ظهور د خلق او پرچم نه وو خو څه نور منکرات موجود ول لکه ساز او سرود، قماربازي،غلاوې او...

خو طالبانو او بعضې مدرسینو به ممانعت کاوو حتیٰ د شپې به د ساز او سرود په محفلونو ورتلل او د زور له لارې به یې منع کول خو د ولس ورسره ډیر همکاري نه وه، بل په لمانځه کې عمومًا خلک کمزوري ول په اطرافو کې عام اخندانو ملایانو د امرالمعروف دنده نه کوله دهغوی د نه توجه او کمزوري له وجهې په ولس کې لږ سستي وه په لمونځونو کې.

**اتمه پوښتنه : کله چې کمونیستانو وغوښتل تر څو افغانستان ترخپل واک لاندې راولي ، نو په دې وخت کې په لوگر کې دجهاد رهبري چا کوله؟ دیو څو تنو نومیالیو نومونه راته واخلې.**

جواب:محترمه! مونږ مخکې یادونه وکړه چې عمومي رهبري د جهاد له جناب حضرت صاحب ضیاءالمشایخ رحمه الله او دده له خوی جناب رئیس صاحب اسمٰعیل جان اغا سره وه او مرکز د جهاد د کابل قلعه جواد ؤ هغوی د لوگر لپاره آمر ولایتې د ملاحسن د قلعه اخندذاده صاحب جناب فضل الحق صاحب ټاکلی ؤ او زه یې د دوی دواړو تر منځ رابط وټاکلم ځکه په ما د دواړو ډیر اعتماد ؤ.

له آمر ولایتي سره خپل ځینې شاگردان لکه ملاخوشحال، ملاکاتب، ملاعزیزالله، ملا عزیزالرحمن، ملازلمی، ملاموسی جان، ملا اسدالله، او ملاخاصدار الوزئ په جهادي چارو کې همکاران ؤ ټول کارونه منظم روان وو ارتباطات تر پل خمري، وردگ، غزني او تر پکتیا پورې ورسیدل حتیٰ نصرالله منصور صاحب د څرخ مولوي صاحب سیداکبر مولوي صاحب محمدنبي به د ملاحسن قلعه اخندذاده صاحب ته راتلل او په جهادي چارو کې به یې مشورې ورسره کولې.

نو یوه کودتاه په اوردو کې برابره شوه په سرپرستي د وزیرمالیه عبدالمالک خان مونږ ته یې شفرونه راکړل مخکې له دې چې کودتا وشي کار کشف شو عبدالمالک سره له ډیرو اوردو ملگرو گرفتار شول.

همدارنگه ملاحسن قلعه اخندذاده صاحب حاجي محمود او ملامرادگل هم په یوه چاپه کې ونیول شول باقي ملگرو په خپل منځ کې ملاخوشحال د امیرولایتي په توگه وټاکه، ورسته له ډیرو هلو ځلو په لوگر ولایت حمله وشوه او چور شو ډیر خلک مسلح شول ورسته بیا هرې خواته حملې شروع شوې.

**نهمه پوښتنه : ګاونډي هیواد پاکستان ته مو په کوم کال هجرت وکړ او چیرته مو استوګنه غوره کړه او دهجرت له دیار څخه مو څنګه خپله مبارزه پیل او پرمخ روانه کړه؟**

جواب: ګاونډي هیواد ته مو په کال ۱۹۶۳ کې پاکستان ته مهاجر شوم دوه کاله مې د بډه بیره په سیمه کې تیر کړل بیا د مولوي محمدنبي فامیلۍ چې جوړه شوه هلته مو ژوند غوره کړ.

کله چې د حرکت انقلاب تنظیم منظم شو زه امیرصاحب د حرکت له خپل ځان سره په دفتر کې د یو څه خاص کارونو لپاره حصـار کـړم، تر یو کال پورې مې په دفتر کې مختلف خدمات تر سره کړل او د شورۍ غړی هم وم بیا مې لوګر ته هم د امیرصاحب په اجازه مختلف سـفرونه وکړل او خپل جهادي خدمات مو جاري ساتل.

**لسمه پوښتنه : له کوم جهادي تنظیم سره مو اړیکې درلودې او کومې دندې مو په کې اجراء کړي دي؟**

جواب:محترمو مونږ مخکې هم اشاره وکړه الحمدالله د تنظیمونو له پیدا کیدلو تر مخه مو هم جهادي چارې پر مخ وړلې خو کوم وخـت چې تنظیم د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان جوړ شو له لوګر نه مونږ ارتباط د همکارۍ ورسره شروع کړ او خپل جهادي خدمت مو د دوی په سر پرستۍ کې په مخ روان کړ.

کله چې لومړی مهاجر شـوم پـه ریاسـت د عـوت تنظیم کـې پـه خـدمت وګـمارل شـوم چـې ډیـر مهـم سـفرونو مـو تـر مرانشـاه،اعظم ورسک،باجوړ او د افغانستان ډیرو ځایونو ته وکړل ورسته کله چې نظامي آلات او اسلحې را ډیرې شوې زه د فتر نظامي مرستیال وټاکل شوم له څه مودې ورسته بیا رئیس نظامي تعین شوم.

**یوولسمه پوښتنه: دحرکت دامیر صاحب جناب اروابناد مولـوي محمدنبي محمـدي (رحمـه الله) پـه بـاب هـم کـه څـه توضیحات راکړئ چې دجهاد اهدافو ته څومره وفادار وو ، ولس ورسره څومره مینه درلوده؟ او دولس څـومره خواخـوږی ؤ؟ په دې اړه که څه خاطري راته بیان کړئ.**

جواب:محترمو د مولوي صاحب محمدنبي په باره کې به دومره ووایم چې ډیر جید عـالم، د ښـه قلـم او بیـان څښـتن وو جهـاد تـه ډیـر مخلص او وفاداره وو، واقعي مجاهدین یې ډیر نازول، اتفاق او اتحاد د تنظیمونو کې ډیر خوښ او مخلص وو.

یو وخت د جهاد کې داسې راغلی لوګر کې تقریباً مرکزونه ختم شول مجاهدین عام پاکستان ته راغلل بعضې مشران کابل تـه داخـل شـول لکه مولوي صاحب شفیع امیر ولایتي کابل، حاجي عبدالرازق مسئول شکردره ملک ښایسته ګل مسئول د غونډ ملا خوشحال امیر ولایتي لوګر صوفي خاکسار صوفي علم ګل د دادوخیلو تول پټ وسیدل، صوفي خاکسار یې آمیرصاحب ته راولیـږه چـې کابـل کـې مـونږ تـه د حکومـت اسلحه ډیر په کم قیمت تر لاسه کیږي مونږ ته پیسې راولیږه امیر د حرکت په شپه کې زه راوغښـتم بیـان یـې راتـه وکـړ چـې ډیـر مهـم پنځـوس زره۵۰۰۰۰ افغانۍ پیدا کړه او ته پخپله ولاړ شه چې دا کار ته انجام نکړې بل څوک یې نشي کولی یو نفر بل چې ستا څوک خوښ وي درسره یې کړه د قوس آخري شپې وې ملګري مجاهدین په حویلیو کې ډیر ول خو ماسره دنګ کوم ملګری پیدا نشو ډیر وګرځیدم بلآخـره مـې مرحـوم ملامحمدعمر د پاتخواب له ځان سره ملګری کړ او هغه کار مو په ډیره ښه طریقه سره انجام کړ.

ولسي خلکو نسبت نورو رهبرانو ته ده ته ډیر محبوب وو که څه هم نورو سره مادیات ډیر ؤ یوه وجه دا وه چې دلته متـدین علـماء طالبـان مجاهدین ډیر ؤ بل دا چې ابتدا د جهاد وه علماء به دوی ته توصیې کولې چې په سیمه کې له ولس سره مشورې مفـاهمې کـوئ تـر څـو ولـس درسره همکار وي.

**دولسمه پوښتنه: کله چې په هیواد کې داروابناد ملا محمدعمر مجاهد(رحمة الله علیه) په مشرۍ دطالبـانو اسلامي خوځښـت پیـل شـو ، اوتقریبـا ( ۲۵ ) کالـه کیـږي چـې دالـړۍ جـاري ده .پـه دې لاره کـې دینـي عالمـانو او ځوانـو طالبـانو قسماقسم قربانۍ ورکړې، اوس مـو پوښـتنه داده چـې اسـلامي تحریـک او دطالبـانو دا مبـارزه د وخـت څـومره غوښـتنه او**

**اړتیاوه؟ دطالبانو ددې اسلامي تحریک یو څو مهمې کارنامې را په ګوته کړئ اوکه نیمګړتیاوې په کې وي ، نو هغه هم راته ذکر کړی، تر څو چې داصلاح کوښښ یې وکړو.**

جواب: محترمو دا ښکاره خبره ده که چیرې دا مبارزه نه وای نو د اشغالګرو هجومي حملو او د ډالر دوستو مزدورانو به عملي دین اسلام ختم کړی وو د همدغې پاکې مبارزې په برکت سره په هیواد او مسلمانانو کې د حق د داعیه جذبه راژوندی شوه او د اشغالګرو او د دوی د اجیرو مزدورانو هیلې یې له خاورو سره خاورې کړې.

په کوم وخت کې چې دغه پاکه چیغه د قندهار له غیږې راپورته شوه دا هغه وخت وو چې په هیواد کې شر او فساد اوج ته رسیدلی وو هیچا خپل سر او مال محفوظ نه ګاڼه هر ولایت هره ولسوالی کې هغه څوک حاکمان وو چې د چا به زور زیات وو دوی به هغه څه کول کوم به یې چې زړه غوښتل ټول افغانستان په مختلفو ډلو ویشل شوی وو پښتون زبان ته فارسي زبان دښمن ښکاریده فارسي زبان ته پښتون زبان په هیواد کې داسې ناخوالې پیښې شوې چې تاریخ یې په لیکلو شرمیږي، د هغه وخت لپاره له هر څه وړاندې داسې څوک ضرور وو چې هیواد له دغو بد مرغیو څخه وژغوري او هغه نه وو مګر طالبان وو چې هیواد له ټولو بدبختیو څخه پاک کړ او ټولو افغانانو د ارام ساه واخیسته ددغه پاک تنظیم له لویو کارنامو څخه یوه دابللی شو چې هیواد یې له تجزیې او بدبختیو څخه وژغوره.

**دیارلسمه پوښتنه:جناب مولوی صاحب په افغانستان دامریکایي اشغالګرو اودهغوئ دمزدورانو په خلاف مقدس جهاد د ولس په مستقیمې اوهراړخیزې همکارۍ پرمخ روان دی ، دیوه خواخوږي مجاهد عالم په صفت مو مجاهدینو او دجهاد مسؤلینو ته څه توصیې او مشورې دي چې په څه ډول دولس زړونه خپل کړي.**

جواب: د څرک مجلې ښاغلیو همکارانو تاسو ټولو ته معلومه ده چې اصلي حکومت کول هغه د ولس په زړونو حکومت کول دي د ولس زړه ساتل چې په هر څومره لوی قیمت وي باید وساتل شي ولس ته عام المنفعت کارونه کول د تعلیم او د صحت اسانتیاوې ورته برابرول د سر او مال یې حفاظت کول د هر مجاهد مبارز او مسئولینو داسې عملونه چې په اوصولو برابر وي د ولس زړونه ګټل کیږي که چیرته داسې وای چې د افغانستان خلک په زور تابع کیدلی نو مخکې هم ډیرو په زور د تابع کولو کوششونه وکړل خو اما چا تابع نکړل د زور حکومت داری بقا نلري.

مبارزین باید دا په پام کې ونیسي چې په جنګي حالاتو کې د ولس ډیر خیال وساتي، د دښمن له اسیرانو سره اسلامي احکاماتو په رڼا کې چلند وکړي له خپلو امیرینو او لایحو څخه سر غړونه ونکړي په ښه نیت او اخلاص کې کامیابي د دارینو ده، مسئولین ملګري باید په ټولو چارو کې د ژبني او قومي تعصبونو څخه ځان وساتي نور چې صفوفو کې څومره مشکلات وي مسئولین ملګري باید زیات ورته متوجه شي، همدارنګه مسئولین باید په خپل صف کې هغه اشخاص چې د هغوی له وجهې دغه پاک صف بدناميږي لرې او یا یې اصلاح کړي، همدارنګه باید عام مجاهدین له هغو کارونو ځان وساتي چې د مجاهد نوم ورسره بدناميږي او په خپل منځ کې باید مینه او محبت وکړي، ټول مجاهدین باید دې ته ډیره توجه وکړي چې په خپل پاک صف کې د منکراتو مخه ونیسي که څوک د منکراتو مرتکب ګرځي باید په ښه طریقه اصلاح شي او دې ته ونه ګوري چې زما ملګری ده که دبل یا زما ملګری ده نو ددې په ځای چې اصلاح شي نو دفاع یې شروع کړو دا دې اسلامي صف ته ډیر لوی تاوان اړوي، له ولس سره باید ډیر ښه چلند وکړي د ولس هر مشر خپل مشر وګڼي هر کشر باید خپل کشر وګڼي دمشرانو باید عزت وکړي او په کشرانو شفقت د شهیدانو او اسیرانو د کورنیو بچیانو باندې باید خاص پاملرنه وکړي د هغوی د بچیانو ښه روزنه وکړي، همدارنګه باید ټول مجاهدین له بیت المال سره ډیر پام وکړي بیځایه یې باید مصرف نکړي، او له ټولو مسئولینو څخه مې دا هیله ده چې خپل ټول کشران مجاهدین دې ته مجبور کړي چې درسونه ووایي تر څو عملي طالبان او مجاهدین شي ځکه اکثره اوقاتو کې چې په صفونو کې مشکلات جوړیږي هغه د بې علمۍ له وجهې وي ځکه داصف چې لومړی شروع شوی له مدرسې او مسجد څخه شروع شوی او هیڅکه به مو سنګر او مدرسه خراف نشي تر څو چې د مدرسې او د سنګر تر منځ چې کوم تار غوړیدلی مظبوط وساتل شي. پای

په هیواد کې د اسلامي او شرعي نظام د راتلو په هیله

# یو رښتینی امیر

د- هـ - م

هغه قوم چې امیر د جنګ په لومړۍ کرښه کې وي، هېڅکله به ماتې ونه خوري.

سید جمال الدین افغان

د خیر القرون او ورسره نږدې زماني نه غیر به کمه پیښه وي چې یو امیرالمؤمنین دې د کفارو لخوا په شهادت رسیږي.

الحمدلله افغانان یو تاریخ جوړونکی قوم دی، ډیرې داسې ځانګړنې لري چې هغه په نورو قومونو کې نشته او یوازې په دوی پورې خاص دي، افغانان په دین مین خلک دي، د تاریخ په اوږدو کې یې هر وخت ثابته کړې چې د خپل دین او وطن دفاع یې په نره کړې او تیري کوونکي ته یې غاښ ماتونکی ځواب ورکړی.

زه نن دلته د یو داسې چا په اړه خبره کوم چې هغه د افغانانو تاریخ ته یو نوی باب ورزیات کړی او راتلونکي نسل ته یې وښوده چې څنګه باید د خپل دین او وطن دفاع وشي او په دې لار کې به تر کومه ځایه قرباني ته اماده وي.

شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور یادوم، نوموړی له مرحوم ملا صاحب نه وروسته د طالبانو دوهم مشر وو چې دا صف یې په ډیر حساس وخت کې ډیر دقیق رهبري کړي او په مخ کې یې پراته خنډونه په تدبیر او سوچ سره له منځه یووړل.

نوموړی چې کله د طالبانو مشر اعلان شو، ډیرو مشکلاتو تبارز وکړ چې ترټولو غټ مشکل یې د طالبانو په صف کې انشعاب یادولی شو، ځینو کسانو له نوموړي سره مخالفت اعلان کړ، په داسې حساس وخت کې دا یوه ډیره پیچلې موضوع وه او په مخالف لوري کې هم ځینې داسې کسان وو چې حساب پرې کېده خو دا منصور صاحب وو چې حالت یې ډیر په سمه توګه رهبری او کنټرول کړ او د دښمن شوم اهدف او پلانونه یې ورخنثا کړل.

نوموړی یو سیاسي او ځیرک لیډر وو، د ده ډیره هڅه دا وه چې د سیمې او نړۍ له هیوادونو سره سیاسي اړیکې ورغوي چې تر ډیره بریده پکې بریالی شوی هم وو، زه چې څومره خبر یم نوموړي به خپله ځینې ګاونډیو هیوادونو ته سفرونه کول، البتة په ډیر مخفي او پټ ډول.

منصور صاحب یو داسې رهبر وو چې تر هر چا وړاندې یې ځان قرباني ته ورمخته کړی وو او داسې به معلومیده لکه یو عادي فرد چې وي، دا دعوه زموږ بې ځایه نه ده، څه چې وشول هغه زموږ د دعوې اثبات کوي، د ده شهادت زموږ د پورتنیو خبرو چې نوموړي به ځان خپله د قرباني ځای ته ورمخته کاوه تصدیق کوي.

دی چې شهید کېده هم، تنها وو او د کرایې په موټر کې له یوه ځایه بل ځای ته پر لاره وو، چا نه پېژاند چې دا څوک دی، موټروان څه خبر وو چې د اسلامي نړۍ یو عظیمه هستي ورسره ناسته ده، د هغه په تصور کې هم داسې څه نه ورتیریدل، ځکه هغه د نن زماني لیډران لیدلي وو چې څومره په کش او پش کې وي، ناځوانه راکټ راغی، په موټر ولګید او یو غر یې ونړاوه، روح یې ښاد او یاد یې تل تر تله. دا راکټي برید د امریکا بې پیلوټه الوتکې وکړ

ژورنالیزم یو ډیر پاک او سپیڅلی مسلک دی، ژونالیست د ولس غږ وي، د وطن غږ وي، د وطن د کاڼي او بوټي غږ وي، د وطن د هر کلي او هر ښار غږ وي، د ماشوم، د مشر، د کشر، د تور سرې، او د سپین سرې غږ وي.

له بده مرغه چې په افغانستان کې د ژورنالیزم تقدس تر پښو لاندې شوی او مکمل ژیر ژورنالیزم روان دی، د افغانستان چې څه رسنۍ او ژورنالیستان دي یو یې هم خپل اصل ته ژمن نه دي بلکې ټول په یو ډول نه یو ډول د پردیو په لمن پورې ټړل

شوي او هېڅکله یې د خپل ولس غږ نه دی پورته کړی.

زموږ ژورنالیزم ټول له غرب او یا هم له ایران نه متأثره دی او هغه څه زموږ په اسلامي او افغاني ټولنه کې ترویجوي، د څه پلان چې ورکړل شوی وي او ټولې پردیو ټرمینولوژیو ته کار کوي.

تاسو کې یو څوک شته چې ما ته دا ثابته کړي چې د افغانستان یوې رسنۍ دې په دې شل کاله کې په هیواد امریکایي یرغل غندلی وي او په جار یې دې ویلي وي چې هو افغانستان اشغال دی.

یوه رسنۍ راته وښیاست چې هغو دې یوه ورځ د امریکا پــه خــلاف دا د ولــس مقاومت او مبــارزه تـر بحـث لانـدې نیـولي او څیړنــه یــې کـړي چــې د امریکــا او متحدینو په خلاف یې روان مقاومت حق او په ټولو اسلامي او بــین الملـلي قوانینـو مشروع دی.

له بده مرغه چې هیڅـوک هـم دا پـه اثبات نشي رسولای، او نـه بـه هـم لـه دې وروسته په دې رسـنیو کـې دومـره جـرأت پیدا شي چې دغسې څه دې وکړي؛ بناً موږ او تاسو ته پکار ده چې تر خپله وســه د دې ولس غږ ورسوو، د افغانستان په خاوره چــې کوم تیری شوی دا وغندو او د خپــل ملـي، اسلامي او انساني همدردۍ او مسؤلیت له مخې د هغه چا څېرې بربنډې کړو چا چــې د اشغالګرو ملا تړلې او د افغانانو په کورونو وراوښتي دي



## د حاسدینو خبرې

امام شافعي رحمه الله وايي:

څوک چې دا فکر کوي چې د خلکو له خبرو څخه به خلاص شـــــي دا لیونی دی، هغوی د الله په هکله وویل ثالث ثلاثة د محمد صـــلی الله علیه وســـلم په هکله یې وویل ســـاحر او لیونی دی، نو د نورو خلکو حال خو به حتما لدینه زیات وي، د خلکو خبري د غټو ډبرو یا تیرو په شان دي که اخلې یې ملا دې ماتوي او که دپاسه پري برج جوړوي نو تر پښـو لاندې به دې وي او پرې کامیابیږې به، پدې اساس خپل هدف دا مه ګرځوه چې خلک ستا په هکله څه وايي بلکې خپل هدف داوګرځوه چې د خلکو رب ستا څه حالت ګوري.

## #کرونا

مســـلمانان باید د الله سبحانه وتعالی لور ته د دعا، توبې، مســـکینانو سره د مرستې، د مریضـــانو د علاج لپاره د صدقاتو راټولولو ته وهڅول شي او خلکو ته وریه یاد شي چې په دنیا کې مســـلمانانو ته د هر راز ضرر رسېدل په آخرت کې د هغوی لپاره د ستر اجر لامل دی، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

«مَا یُصِـــیبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلاَ وَصَبٍ وَلاَ هَمٍّ وَلاَ حُزْنٍ وَلاَ أَذًى وَلاَ غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا، إِلاَّ كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ» رواه البخاري.

ژباړه: مســـلمان ته د ستونزې، مصـــیبت، هم، حزن، ضرر، غم او آن د یوه اغـزي داخلېدل د هغه بدن ته نه دي، مګـر د دې لپاره چـې الله متعال یـې ګناهونه کموي.



# د صحت کمیسیون له عمومي مسؤل
# ملا عبدالحق آخند سره مرکه

مرکه کوونکی : حبیب مجاهد

پوښتنه

**السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته، تاسو ته هر کلي وایو. له هر څه مخکې که خپل ځان په مختصر ډول را معرفي کړئ، ستاسو نوم، ځای، اوسنۍ وظیفه او پخوا مو په امارت کې کوم کوم وظائف اومسؤلیتونه ترسره کړي دي.**

ځواب

وعلیکم السلام ورحمت الله وبرکاته، له تاسو هم مننه کوو، الله تعالی مو سلامت لره. زما نوم ملاعبد الحق دکندهار دنیښ ولسوالي د (شاویز) کلي اوسیدونکی یم. د دیني علومو طالب وم او تر وړې دورې مي تحصیلات بشپړ کړي وو چې د شر ، فساد او فتنې اور د هیواد هر کنج او کنار ته ورسیدو. د هیواد علماؤ یې په وړاندې مبارزه فرض وبلله د هغوی په فتوی د طالبانو اسلامي تحریک د مرحوم امیر المؤمنین په قیادت کې جهاد پیل کړ دا چې زه هم طالب وم نور مي دې ته ترجیح ورکړه چې د نورو طالبانو په څنګ کې په دې مهم کې برخه واخلم هماغه وو چې د مرحوم فقیر شهید (مولوی عبدالسلام) اخند په مشرۍ مې دمرحوم امیرالمؤمنین مجاهد ملامحمد عمر اخند په قیادت کې جهاد پیل کړ، تر ډیره وخته د یوه عادي مجاهدپه توګه په جهادي لیکو کې په جهاد مصروف وم خو وروسته بیا د مشرانو د ځانګړي لزوم دید له کبله ځینې مسؤولیتونه هم راپه غاړه شول. د زاړه امارت په مهال مي د طالبانو په مسلحو ځواکونو کې په ځانګړي توګه امنیتي سکتور کې ډیر کار کړی چې د هغوی له جملې د هرات د امنیې قومنداني مسولیت د امارت له پیله بیا تر پایه زما په غاړه وو خو کله چې په هیواد د امریکا په مشري نړیوال چپاو راغی اسلامي امارت سقوط وکړ او جهاد په نوي بڼه او نوي نوعیت رنګ واړول ما هم خپل ملګري منظم کړل او د کفر او اشغال په وړاندې مومبارزه پیل کړه چې د کندهار ولایت له شپږو لویو محاذنو څخه یولوی محاذ زموږ وو اوس هم په هرات او کندهار کې په لوی شمیر دلګۍ راسره دي. خو له دې سره سره کله چې د طالبانو اسلامي امارت د دوهم ځل دپاره امارتي تشکیلات احیاء کړل زه یې د دې جوګه وبللم چې څه کارونه د یو مسؤول په توګه سرته ورسوم هماغه وو چې اول د نیش ولسوالي نظامي مسؤول او بیا ور پسې د هرات ولایت معاونیت او د بندیانو دکمیسون مسؤولیت او بیا د ملکي تلفاتو د کمیسون مسؤولیت راپه غاړه شو خو اوس تقریبا تر یوکال زیاته موده وشوه چې د عامې روغتیا یا صحت د کمیسیون د مسؤول په حیث دنده مخته وړم.

پوښتنه

**د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د صحت کمیسیون څه وخت جوړ شوی دی او د جوړیدو مقصد یې څه وو؟ که د صحت کمیسیون د تشکیلاتو او خدماتو په برخو په اړه معلومات راکړئ؟**

ځواب

د صحت اداره د اشغال په وړاندې د جهاد له پیله موجوده وه خو په لومړي سر کې د اسلامي امارت د نظامي کمیسون مربوط یو څانګه وه چې یوازې د مجاهدینو د زخمیانو د علاج چارې یې مخته وړې خو کله چې مجاهدین الله تعالی په فتوحاتو ونازول او ډیر سیمې د اسلامي امارت تر قلمرو لاندې راغلې د اسلامي امارت تشکیلاتو همزمان ورسره وده وکړه هماغه وو چې په دوه زره یوولسم کال کې د صحت کمیسون اداره د عامې روغتیا په عنوان داسلامي امارت په تشکیلاتو کې یو مستقل بودیجوي واحد وبلل شو او ځانګړي لائحه ورته جوړه شوه.

پوښتنه

**آیا د اسلامي امارت د صحت کمیسیون یوازې د اسلامي امارت اړونـد ټپیـانو علاج کوي او که د ولس لپاره عامه خدمتونه هم لري؟**

ځواب

کله چې په تشکیلاتي او بودیجوي لحاظ نوښت راغـی همزمـان زمـوږ دکارونـه پـه ظرفیت کې هم د پام وړ ارتقاء او بدلون راغی که پخوا موږ یـوازې د زخمیـانو د عـلاج او درملنې چارې مخته وړې خو اوس د زخمیانو علاج د خپل کار یوه برخه بولو بلکه د خپلو هڅو عمده ترین سمت مو د عمومي صحت چارې مخته وړل دي مـوږ اوس پـه دې کـې لګیا یو چې په څه ډول عام ولس ته صحي باکیفیته عادلانه داسې خدمتونه وړاندې کـړو چې باثباته دوامداره او د هیوادوالو لاس رسی ورته وشي .

اوس د الله تعالی په فضل او کرم سره موږ د اسلامي امارت تر قلمرو لانـدې سـاحو کې په مختلفو مستواوو بیلابیل روغتونونه لرو همدارنګـه دانتـاني (عفـوني ) نـاروغیو د مخنیوي او وقایې په برخه کې بیلابیل پروګرامونه لرو دهیواد په اکثر سیمو کـې دمـور او ماشوم ، رواني صحت او داسې نورې اړینې څانګې لرو.

پوښتنه

**که په مشخص ډول راته ووایاست، په تیر یـوه کـال کـې د صـحت کمیسـیون کوم خدمتونه ترسره کړي دي؟**

زه چې کله د امارت په لزوم دید د صـحت د مسؤول پـه حیـث معـرفي شـوم زمـا اولنی پلان او ستراتیژي دا وه چې د صحت دکـارونو د ښـه نظم او سـمون پـه موخـه د حساب دهي یو شفاف سیستم رامینځته کړو، دې ته زمینه برابر کـړو چـې پـه څـه ډول هیواد په عادلانه ډول له دست داشته صحي امکاناتو څخه ګټه پورتـه کـړي ، او دا چـاره دیته اړه وه چې موږ د ټول افغانستان په سطحه یو قوي اداري نظام ولرو دې هدف تـه د رسیدو په پار موږ اړ و چې د ولایاتو ټول صحي مسؤولین له نژدې وګورو د کارونو په نظـم توحید او معیاري توب کې هم د هغوی نظر واورو او هم هغه ټکی سره هماهنګ او د یوه معیاري طرز العمل په متن کې راټول کړو چې توحید یـې ممکـن دی ځکـه مـو یـو وسیع البنیاده میتودیک سیمنار جوړ کړ چـې د هیـواد ټولـو صـحي کارمنـدانو پـه کـې ګـډون درلود دپ نځو ورځو له اوږدو بحثونو وروسته مو په څلویښت مادو کـې یـو داسـې طـرز العمل رامینځ ته کړ چې پـه ټـول افغانسـتان کـې دتطبیـق وړ وو ، او زمـوږ لـومړی تـوب لاندې موضوعاتو ته وو :

دصحت اړوند ټول طبي مؤسسات کـه هغـه امـارتي وي او کـه نـا امـارتي یعنـی د مؤسساتو له خوا وي لومړی رجستر بیـا د هغـوی کـاري پلانونـه ، تشـکیل ، بودیجـه او د بودیجې منابع په جلا جلا توګه هم په خپله وڅیړو او هم د خپلو څیړنو واحد معلومـاتي راپور رسما د کمیسیون دمشرتابه دفتر یعني مرکزي اداري دفتر ته ولیږو .

د لګښتونو کنترول او د هغوی په ځای مصرفول هغـه موضـوع ده چـې کمیسـیون تـه د خورا اهمیت وړ ده او په دې لار کې یو هیات ته وظیفه ورکـول شـوه چـې داخـل تـه ولاړ شي هلته د لګښتونو نوعیت د هغوی تدارک او په ځـای مصـرف لـه نـژدې وګـوري هیـات غـزني زابل کندهار هلمند روزګان ته سفر وکړ په دې اړه یې خورا ډیرې هلې ځلې وکړې موږ تـه یـې کافي معلومات راټول کړل د هغو معلوماتو په رڼا کې په دې وتوانیدو چـې ټولـو کلینیکونـو تـه معیاري پرسونل استخدام کړو او زمـوږ پـه سـلو کې اتیا پرسونل معیاري شـو د درملـو دکیفیـت د ارتقاء په اړه مو ځانګړي معیارونه نه تنها چـې وضع کړل بلکه عملي مـوهم کـړل اوس پـه سـلو کـې تقریبـا نـوي برخـه درمـل د انترنیشـنل یـا مـولتی نیشـنل کمپنیـو کـارول کیـږي هغـه کلینکونو چې په لرې پرتو سیمو کـې موقعیـت درلود هلته مـو د جګـړې یـا بمبـار پـه توسـط د ملکیانو دپاره د اولیه مرسـتو سیسـتم برحالـه او په ډیری ولسوالیو کې مو ځینو کلینیکونـو تـه د امارت په امکاناتو ارتقاء ورکړه د دې جوګه مـو وګرځول چې هلتـه د داخلـې تـر څنـګ داسـې جراحي څانګې هم برحالي شي چې د جګـړې یـا بمبار په مهال د ملکي تلفـاتو تـر عهـده ووتـلای شي.

د مریضـانو د انتقـال پـه موخـه مـو د امبولانس سیستم برحاله کړ که پـه کومـه ځـایو کې خپل امبولانس ونـه لـرو دټکسي۔ امبـولانس چاره مو ورسره ترسره کړه د پولیو او نـورو اړینـو واکسینو د تطبیق دپـاره مـو پـه کلینیکونـو کـې زمینه سازي وکـړه ، کـوم مسلکي ډاکترانـو تـه چې د مؤسسـاتو لـه خـوا معـاش نـه ورکیـدل او یایې معاش تر ټاکلي معیار کم وو دهغوی دپـاره مو د اسلامي امـارت لـه لـورې بشـپړ یـا قسـمي معاشونه وټاکـل د ټیکـه دارو مؤسسـاتو لـه خـوا چې د ټارګیټ د پوره کولو پـه موخـه غیـر اړیـن جراحـي عملیـات تـر سره کیـدل هغـوی مـو کنترول کړل اوس یوازې هغـه عملیـات تـر سره کیږي چې له فني نظره یې له عملیاته پرته چـاره نـه وي پـه ازاد بـازار کـې مـو د دوایـي امـورو معیاري توب تر کتنې لانـدې ونیـو د دواخـانو، لابراتواري ریـدیالوژي مرکزونو،شخصي۔ معاینـه خانو دپاره مو د ټاکلیو فني معیارونو په رڼـا کـې د لایسنس سیستم او هم مـو د شـپې لـه خـوا د نوکریوالي سیستم ترویج کړ د لګښتو او حساب ورکولو سیستم مو تـر ډیـره معیـاري کـړ ترڅـو شفاف او ځوابګوی واوسې .

پوښتنه

**همدا اوس په هیواد او نړۍ کې د کرونا په نوم ناروغي خپره شوې ده. د دې ناروغۍ د مخنیوي او خلکو د پوهاوي لپاره د صحت کمیسیون کوم اقدامات کړي دي؟**

ځواب

په هیواد کې دکرونا د ناروغي د لومړنیو پیښو له تثبیت سره سمدستي مو د رهبري شورى غونډه را وغوښته تر څو د دې ناوړه وبايي ناروغۍ په اړه سنجیده تصمیم ونیسو، فیصله مو داسې وکړه چې څومره ژر کیدای شي ولس د دې ناروغي له ناوړو خطرو خبر او وپوهوو ترڅو یې په وړاندې ملي مبارزې پیل شي داسې ځایونه باید ولرو چې شکمن ناروغان په کې قرنطین کړو او خلک وپوهوو چې د تجمع له ځایونو ډډه وکړي او سپارښتنې مو وکړې چې د دې وایرس د مخنیوي په غرض له شته امکاناتو کار واخیستل شي. لکه د ماسک استعمال، دمایعاتو استعمال، د صابون استعمال، یو له بله لیرې والی په دې اړه مو یوازې په مطبوعاتي اعلانونو کفایت ونه کړ، بلکه د یوه ځانګړي میکانیزم له مخې مو په هر ولایت کې د مسجدونو ملا امامان با نفوذه اشخاص راسره ملګري کړل ترڅو په عامه پوهاوي او د خلکو د شعور په را ویښولو کې راسره مرسته وکړي. څه ځانګړي بینرونو او پوسترونه مو چاپ کړل او همزمان مو د هري ولسوالي مدیر او ولایتي مسؤول ته دنده ورکړه چې طبي ټیمونه تر تیب کړي او پرته له دې چې لویې غونډې جوړې کړي د کرونا د مخینوي او په وړاندې د مبارزې کمپاین پیل کړي. دکلي هر مسجد ته ځان ورسوي علماء کرامو او ملا امامانو ته سپارښتنه وکړي ترڅو له خپل نفوذه ګټه واخلي او خلک دکرونا وایروس په ناوړه عواقبو وپوهوي ، له بهر نه راتلونکي هیواد والو ته توصیه وکړي چې تر پنځلسو ورځو په خپلو کورنو کې قرنطین پاته شي او که په چا کې د ناروغي نښې وي د اسلامي امارت له خوا تیار شوي قرنطیني سنترونو ته واستول شي ترڅو  معاینات تکمیل کړي  د هري ولسوالي د صحت مسؤول ته مو د امارت په امکاناتو د ضد عفونت مایعات، صابونو ، ماسکونه  په کافي اندازه خریداري کړل له دې سره سره مو په نړیوالو طبي سازمانونو غږ وکړ چې خپل امکانات دریغ نه کړي او پوره ډاډ مو ورکړ چې که تاسو په دې اړه کوم پروجکټونو تطبیقول غواړئ د اسلامي امارت د صحت کمیسون به تاسې ته بشپړه زمینه سازي وکړي. د الله تعالی په فضل او د علماؤ او بانفوذ خلکو او طبي کارمندانو په مرسته تر ډیره حده زموږ  دا کار کامیاب وخوت د اسلامي امارت په قلمرو کې دکرونا پیښې په ډیره ټیټه کچه ثبت شوي حتی زموږ ملګرو په ډیرو ځایو کې ښاري علاقو ته خپل امکانات رسولي او د ناروغانو لاس نیوی یې کړی دی.

پوښتنه

د دښمن لخوا تبلیغات کیږي چې د اسلامي امارت لخوا د روغتیایي خدمتونه مخه نیول کیږي. مجاهدین روغتونونه نړوي او صحي کارکوونکي وژني. ستاسو ځواب د دغسې اتهاماتو په اړه څه دی؟

ځواب

دښمن خو لکه چې تاسې وویل دښمن ده او تبلیغات همیشه دجګړې مهم اړخ وي هغوی داشغال له پیله آن تر اوسه  تبلیغاتي دستګاه چوپ نه ده پرې ایښې څه چې په خوله ورغلي نور یې سترګې پټې او د میدیا په ذریعه نشر کړي خو څه چې واقعیتونه او قضاوتونه دي هغه د ولس په وړاندې واضح دي. څه چې موږ کوو یا مو کړي دي له هیڅ چا نه دي پټ او تاسې وینئ چې ملي قضاوت د اسلامي امارت په وړاندې ډیر قاطع دی. دخلکو پراخ ملاتړ په خپله د دې ډول پوښتنو ځوابګوی دی تاسو به ازاده میدیا کتلي وي چې له همدې کرونا څخه دکابل اداري د یوې لنګې غوا یا انتفاعي پروژې کار واخیست. په میلونو روپۍ د عامه پوهاوي په بهانه اختلاس شوي. د تلویزونو په ایدور تایزرو کې فی دقیقه په پنځه دیرش زره افغانۍ محاسبه شوه حال دا چې د هیواد اویا فیصده خلک تلویزني اسانتیاوې نه لري  په بلخ کې د کرونا د مخنیوي دپاره ځانګړي شوي بودیجه ټول اختلاس شوه هغه لیست چې د بی بی سی په شمول ډیرو آزادو مطبوعاتو خپور کړ د چایو یو ترموز په پنځه زره افغانۍ محاسبه شوی دکرونا په نوم راغلی نړیوالې مرستې او ملي ځانګړې شوي بودیجه په همدې ډول بې باکې مصرف شوه خو غریب ولس ته یې د یوې روپۍ خیر ونه رسید

پوښتنه

**د کرونا او نورو ناروغیو سره د مبارزې په برخه کې تاسو له نړیوال روغتیایي سازمان او نورو مؤسساتو سره تر کومه حده رابطه او هماهنګي لرئ او د خیریه مرستو د جلب او ولس ته د رسولو په برخه کې مو کوم اقدامات کړي دي؟**

ځواب

ولس ته صحي اسانتیاوي برابرول د ولس بشري حق دی او اسلامي امارت د دوی دا حق په سر سترګو منلي همیشه یې کوشش کړی چې صحي اسانتیاوې که له هرې لارې وي نه یوازې داچې برابري یې کړي بلکه له هغوی نه دعادلانه ګټې اخیستنې په موخه زمینه سازي کوي. موږ تقریبا په هرکال کې په نړیواله کچه د صحت له نړیوالو سازمانو ډبلیو ایچ او د ماشومانو له نړیوال سازمان یونیسف  سور صلیب ، بی سرحده ډاکترانو ، د ایمرجنسي روغتون له مسؤلینو سره لیدنې کتنې کړي موږ هغوی ته ډاډ ورکړی چې که

تاسې هر ډول بشري مرسته د صحت د اسانتيا وو د برابرولو په پار تـرسره کـوئ اسلامي امارت پرته له کوم شرط او قيد ستاسې مرستې په ورين تندي اخلي او د دې زمينه درتـه برابروي چې په سيمو کې پلي کړي د هرډول امنيت تضمين او ډاډ ورکوي هغوی هم په ډېرو برخو کې اماده گي ښودلې حتی عملي کار يې کړی موږ يې ستاينه کوو ترې خـوښ يو البته يو عمده ستونزه شته چې يادونه يې اړينه بولم هغـه داچـې يـاد مؤسسـات اکـثر کارونو نورو اينجوگانو ته په ټيکه ورکوي همدا وجه وي چـې خـدمات څنگـه لازم وي پـه هغه ډول ولس ته نه رسيږي.

**پوښتنه**

**په رسنيو کې مو بار بار داسې خبرونه اوريدلي چې پـه تيـرو څـو کلونـو کـې ددښمن لخواپه اطرافي سيمو کې ډېر کلينکونه د چاپو پـه مهـال الوځـول شـوي او تخريب شوي دي. که په دې اړه معلومات راسره شريک کړئ؟**

ځواب

هو په ډېر تاسف سره دا خبره تائيـدوم څکـه تيـل شـوی جنـگ ، تجـاوز ، اشـغال بـل ارمغان نه لري هغوی هيڅکله په جگړه کې د جگړې قوانين نـه دي رعايـت کـړي، هميشـه يې له وحشت کار اخيستی او د جگړې د خساراتو انتقام يې له ملکيانو اخيستی نـه يـې پـه مقدساتو صرفه کړي نه په مساجدو نه په مدرسو او ښونځيو حتی په ډېرو ځـايو کـې عـامو بازارونو ته اورونه اچولي نو روغتونونه به ولې روغ ترې پاته کيـږي ؟ تيـر کـال چـې يـو ډېـر خونړی کال وو د دې ډول خساراتو ارقام ډېر لوړ وو د هيواد په لري پرتو سيمو کـې ډيـری کلينيکونه آن له بنياده وران کړل زموږ کارمندان طبي پرسونل نرسان يې شهيدان کړل ډېـر يې په چاپو کې ژوندي له ځان سره بوتلل موږ د قطر د دفتر له لارې بار بـار نړيوالـو صحي سازمانو، سره صليب او نـورو بشـري سـازمانونو سره دا خبـر شريـک کـړی هغـوی هـم پـه کلينيکو يا ملکي تاسيساتو حملې د جگړې د منـل شـويو قوانينـو خـلاف عمـل بللـی د بـې سرحده ډاکترانو مسؤول مقام خو يو ځل دا هم وويل چې موږ تـر سـل زيـات ملاقـاتو نـه د افغانستان له حکومت او امريکايي مقاماتو سره کړي ترڅو داسې يو توافق تر لاسه کړو چې د ناروغانو او طبي پرسونل مصؤنيت تضمين کړي مگر له يادو مقاماتو نه مو هيڅ نه دي تـر لاسه کړي دوی وايې د دې بهير له بندولو څخه عاجزه يو خـو دا ژمنـه بـه يـې وکـړه چـې د خسارمند شويو کلينيکو د بيا رغونې دپاره خپلې مرستې نـه سپموي او پـه دې اړه يـې پـه ځينېو کلينکو کې مرستې تـر سره کـړي هـم دي د اللـه تعـالی فضـل دی چـې وران شـوي کلينيکونه موږ د امارت په امکاناتو يا د خيره مؤسساتو له لارې په ډېـر کـم وخـت کـې بيـا رغولې او د هيوادوالو د گټې اخيستنې جوگه مو گرځولې .

په دې اړه د څو هغوناوړه او غير انساني جناياتو نمـونې ستاسې مختـه ږدم چـې د يرغلگرو قواوو يا اجيرې اردو له لورې د صحي مراکزو په وړاندې ترسره شوي

)۱( په [۲۰۱۵] م ميلادي کال کې د د [msf] يا بې سرحده ډاکترانو د روانی ناروغيو شفاخانه چـې پـه کنـدز کـې بمبـار شـوه چـې تقريبـا (۴۲) تنـه د څـوارلس هغـو مسـلکي ډاکترانو په شمول په کې ووژل شول چې له [msf] سره يې رسما عضويت درلود .

)۲ (دغزني د ناوې کلينيک چې د ياد ولايت د اکـثره ولسـواليو او د زابـل ولايـت د ځينو ولسواليو ناروغان په کې تداوي کيدل د لومړي ځل دپاره په د دوزره شپاړم اگست مياشت کې بمبارد شو او د دوهم ځـل دپـاره په دوزره اتلسم او نولسم کال کې چاپې پـرې ولويـدې چـې وسـائل امبولانسـونه يـې هرڅـه تخريب او څوکيداران يې وتړکول شول .

)۳ (په دوزره اولسم کـال فـبروري کـې د بغلان ولايت پلخمري ولسوالي شـهر نـو سيمه کې داو ار سي ډی يو فعـال روغتـون د ناروغـانو پـه مـخ پـه دې وتـړل شـو چـې د مجاهـدينو زخميان په کې تداوي کيږي او ټول وسائل يـې ضبط شول په وروسته کې ډاکـتر صـفي صـديق او ډاکتر احمدضياء د بغلان ولايت د امنيت له لورې ونيول شول او په دې بهانه يې وډبول چـې د مجاهدينو ساحي ته د ناروغـانو دعـلاج دپـاره تللي وو

(۴) ددوزره اتلسم دديسمبر پـه مياشـت کـې دکـونړ ولايـت دشـلتن ولسـوالي يـو فعـال کلينيک لومړی تر چاپـه لانـدې شـو او وروسـته بمبار شو ټول وسائل درمـل يـې لـه خـاورو سره خاوری شول .

(۵) ددوزره اتلسـم کـال دسـپتامبر پـه ديارلسـم تـاريخ دننگرهـار دخوگيـانو ولسـوالي دنوکړخيلو دسيمې کلينيک بمبـار او پـه بشـپړ ډول له مينځه ولاړ .

(٦)د دوه زره نولسـم کـال دجنـوري پـه درويشـتـم تـاريخ دننگرهـار ولايـت سره رود ولسوالي دککړک سيمې کلينيـک چـې لـومړی يـې چاپـه پـرې ووهلـه وروسـته يـې پـه بمونـو والوزول .

(۷) دوزره نولسـم نـومبر مياشـت يـې دبغلان ولايـت دلرخـابيو بـې ايـچ سي کلينيـک باندې چاپه ووهله دکلينک ټـول وسائل او شته دراو درمل يې وسوځول دکلينيک څوکيـدار يـې ژوند له ځان سربوت .

(۸) دتيرکال دحوت پـه لسم يـې دبغـلان دجـوی خشـک بـې ايـچ سي کلينيـک بانـدې لومړی چاپه واچوله او وروسته يې طبي پرسـونل ترې وشړل او داجيـري ارود دعسکر قـراره گـاه يې ځينې جوړه کړه .

(۹) تیر کال دیاد ولایت دپلخمري دبالا دوري په سیمه کې درتنه طبي ډاکټران پـه دې تور ونیول چې تاسو دمجاهدینو سیمې ته تللي یاست لـه زیـاتو شکنجو کـړاو ځـور او تکلیـف وروسته راخوشي شول .

(۱۰) پـه دوه زره اتلسـم کـال کـې دفاریـاب ولایـت دپښـتونکوټ ولسـوالي کلینیـک بمباریدل چې ددوه تنو مسلکي پرسونل له شهادته علاوه یوولس کسه ملکـي ناروغـان پـه کـې شهیدان شول

(۱۱) دروان دوه زره شلم کال د فوروري په دریمه دکندوز ولایت دګـل تیپـې ولسـوالي د بریده تپې بی ایچ سي کلینیک په یوه وحشیانه بمبار کې له مینځه ولاړ چې یـو تـن څوکیـدار یې شهید وسائل او موجود درمل یې له خاورو سره خاوري شـول. پـه همـدې تـاریخ د روزګـان ولایت یو بی ایچ سي کلنیک په همدې ډول بمبار او په بشپړه توګه تخریب شو

(۱۲) د دوه زره نولسـم کـال پـه جـولای کـې د میـدان وردګ ولایـت پـه دای میـرداد کلینیک چې د سویدن د مؤسسې له خوا جوړ شوی وو او د شپنیو علمیاتو پـه تـرڅ کـې بریـد پرې وشو چې دوه تنه طبي کارمندان او یو د ناروغ پایواز په کې شهیدان شول .

( ۱۳) د فاریاب ولایت د تیز ناوې کلینیک چې یوځل په دوه زره شپاړسم کې بمبـار شـو او به بشپړه توګه له مینځه ولاړ چې له هغه ځایه خواجه موسی ته انتقال شو بیا په دوهـم ځـل په دوه زره اولسم کې په خواجه موسی کې بمبار او پـه بشـپړه تخریـب شـو چـې کلینیـک لـه هغه ځایه د غارتیپې بی ایچ سی ته انتقال شو بیا په دریم ځـل پـه دوه زره نولسـم کـې پـه ړنـا ورځ بمبار شو چې تقریبا لس تنه ښځې او ماشومان په کې شهیدان د ایکسرـن د ټیکنشـن پـه شمول دیرش کسه په کې ټپیان او بشپړ تخریب شو چې د اسلامي امـارت لـه خـوا بیرتـه پـه مجدد ډول اعمار تعمیر او ګټې اخیستنې ته چمتوشو.

**پوښتنه**

**د صحت کمیسیون د روغتیایي کارکوونکو د روزلو لپاره کوم پروګرام لري او کنه؟**

ځواب

تر کومـه ځایـه چـې د صـحت لـه اداري سره تـړاو لـري د روزنـې کـار روان دی او دکارمندانو د مسلکي ظرفیت د ارتقـاء هـر اړخیـزه او پراخـه زمینـه ایجـاد شـوي ده ، د نرسانو د روزلو دپاره پروګرام شته او په زیاته پیمانـه دسـتاژ محصـلینو تـه دسـتاژ دورې تیرولو امکانات هم لرو همدارنګه په خپلو روغتونو کې د لومړنیو مرستو د زدکـړو دپـاره په زړه پورې وسیع پرګرام لرو خو دا چې آن له پیله ډاکټران وروزو پـه صـحت کمیسـون پورې ارتباط نه لري ځکه له موږ سره اکـثره ډاکـتران د معـالجې پـه بخـش کـې مسـلکي تخصص لري هغه استادان چې کدري امیتاز ولري له موږ سره په ډیره لیـږه انـدازه شـته چې هغوی هم د معالجې پـه چـارو کـې راسره مصروف دي پـه دې اړه شـاید د اسـلامي امارت د عالي تحصیلاتو اداره امکانات ولري.

**پوښتنه**

**د اسلامي امارت د صحت کمیسیون د مسؤل په حیث مو اهـل خیـر خلکـو او مرستندویه ټولنو ته پیغام څه دی؟**

ځواب

دا چې سالم عقل په سالم بدن کې وي اوصحت د انسان فردي او ټولنیز حـق دی نویوازې په مسـؤولو مقامـاتو پـورې انحصـار نـه لري مـوږ ټـول مسـؤولیت لـرو چـې سالم بـدن سالمه تندرسته صحتمنه ټولنـه ولـرو د صـحت پـه اړه هرڅـوک مسؤل دي او هرڅـوک پخپـل ځای باید دا مسؤولیت هـم احسـاس او هـم یـې پـه بشـپړه معنـی وپیژنـې ، مـوږ پـه یـوه ډیـر وروسته پاته جګړه ځپلي ستم دیـده هیـواد کـې اوسو که موږ ټول یو بل ته لاسونه سره ورنه کړو شـاید سـتونزې مـو لا ډیـرې شي. زه پـه ټولـو هیوادوالو غـږ کـوم چـې د صـحت پـه اړه خپـل مسؤولیتونه درک کړي که مـوږ یـو سـالم پـاک چاپیریـال ولـرو نـو سـالمه تندرسـته صـحتمنه ټولنه به ولرو همدارنګه د خصـوصي سـکتور پـه هغو مؤسساتو غږ کوم چې د صـحت پـه عنـوان هڅـې کـوي بایـد هڅـې یـې صرف او صرف د یوبشري خدمت په موخه وي نه دا چـې هغـوی ته د یو ډول کاروبار یا بیزنس پـه نظـر وګـوري ، همدارنګه د هیواد په شتنمو خلکو غږ کوم چـې د صحي ظرفیتونـو د بهبـود او ارتقـاء پـه موخـه خپلې هڅې او سرمایه دریغ نـه کـړي پـه طبـي کارمندانو ډاکټرانو نرسانو ټیکنشـنانو غـږ کـوم چې ستاسې مسلک ډیر حساس ، مقـدس ، او د ټولنې شدیده اړتیـا ده الله تعـالی تاسـو تـه پـه دې اړه هغه صلاحیتونه درکـړي چـې یـوه عـام انسان یې نه لري که خپل مسلک ته وفادار پاتـه شئ او په سمه توګه د خپل مسؤولیت احسـاس وکړئ په دنیا کې عزت ، پـه ټولنـه کـې درونـد مقام بشري تـاریخ تـه ژمنتیـا ، پـه اخـرت کـې جنت او د خدای تعالی رضا مو پـه برخـه ده او که خدای مکړه د کاروبار یا بیزنس په نظر ورتـه وګورئ نو پوه شئ چـې خـدای ، تـاریخ او خلکـو ته به مسؤول یاسـت مـوږ ځـان ژمـن بولـو چـې ستاسې هر هغې مشورې ته به د عمل جامـه ور اغوندو چې شرعا جواز ولري او ستاسې هـر ډول خدمت ته به د قدر په سترګو ګورو

ــ ډیره زیاته مننه چې وخت مـو راکـړ الله تعالی مو بریالی لره

ــ له تاسو هم مننه موفق اوسئ.



# آه! د ایشیا د علومو له کهکشان (دارالعلوم دیوبند) یوبل ځلاند ستوری هم پریوت!!

ابوظهیر

د روان ۱۴۴۱هـ ق کال، رمضان المبارک په ۲۵مه (۲۰۲۰ز- مې ۱۹مه) رسنیو کې ددې ویرجن خبر په لیدو او لوستو «چې د ایشیا د لوی تاریخي علمي اوروحاني مرکز (دارالعلوم دیوبند) صدرالمدرسین او شیخ الحدیث مولانا مفتي سعید احمد پالنپوري رحمه الله،دورپیښې ناروغۍ له کبله ممبي ښارپه یوروغتون کې له فاني نړۍ څخه دابدي ژوند په لور رحلت وکړ » نړۍ کې دلکونه مسلمانانوزړونه زخمي اوغمجن شول انا لله اوانا الیه راجعون

دمولانا مفتي سعید احمد پالنپوري رحمه الله د جلالتِ شان اود لوړ محدثانه اوفقیهانه مقام معلومولو لپاره هم دومره بس اود نور څه ویلوته ضرورت نشته چې هغه دټولې ایشیا دأُم المدارس والجامعات (دارالعلوم دیوبند) شیخ الحدیث اوصدر المدرسین و! اوکلونه،کلونه دارالعلوم دیوبند پشان علمي اوروحاني فیوضاتو اوبرکاتو له سرچینې څخه یې دنړۍ د مختلفو برخو اوهیوادوڅخه په زرګونه شمیر ورتلونکي دنبوي علومو تږي (طالبان) یې سیرابول، د دارالعلوم دیوبند دصدارت منصب او د «شیخ الحدیث مسند» معمولي شرف یا وړوکی سعادت نه شمیرل کېږي،بلکې د ټول دارالعلوم دعلمي،روحاني او د اجتماعي عظمت مظهر ګڼل کېږي،همدا وجه ده چې په هردورکې دخپل دوریا زماني ممتازو علمي شخصیتونو اواکابرولپاره خاص وو،په کومو کې چې د حضرت شیخ الهند (مولانا محمودالحسن دیوبندي) خاتم المحدثین مولانا سیدانورشاه کشمیري او د شیخ العرب والعجم مولانا سید حسین احمدمدني رحمهم الله نومونه په خاصه توګه دیادولو وړدي،مولانا پالنپوري دهمدې یادو اسلافوځای ناستی اوجانشین و، یقیناً په ژوند یې ددارالعلوم دیوبند علمي اوروحاني بڼ د پخوا پشان تروتازه ښکاریده،چې اوس په رحلت یې په طراوت، تازګی اوښکلا خزان لګیدلی پرېښي، کومو بختوروعلماوو چې مخامخ دحضرت پالنپوري رحمه الله دعلوموڅخه فیض یااستفاده پورته کړې،هغوی کولی شي چې په واقعي اوسمه توګه دمرحوم ممتاز اولوړعلمي شخصیت لوستونکوته انځورکړي او محدثانه،فقیهانه اومتکلمانه مقام یې هغه څوک ښه درک کولی شي چې دمرحوم د لازوال محققانه تصنیفاتو او تالیفاتو په چینو یې خپلې تندې خړوب کړې وي.

له مبالغې پرته دمولانا پالنپوري په نیکمرغه ژوند د دارالعلوم دیوبندعلمي فضا زیاته ښکلې او معطر وه،مرحوم په یووخت کې ممتازمفسر،قوي محدث،مسلم فقیه اولاځواب متکلم و،په تقریروتحریر دواړوکې ورته الله تعالی لامثال ملکه اوبې جوړې استعداد ښنلی و،یقیناً وفات یې دیوې کورنۍ یا د یوفرد لپاره ویرندی،بلکې ټول اسلامي امت یې په رحلت باندې مغموم او رنځور ښکاري،مرحوم که یولورته دهندوستان دمسلمان ملت لپاره ګرانبیه سرمایه ،داډ اوتکیه و،بل پلوته دنبوي علومو دطالبانو اوعلماوو لپاره په خاصه توګه د درالعلوم دیوبندپشان دنړیوال علمي اوروحاني جامعې لپاره د فیض وبرکت رونق اوښکلا هم وه

دمرحوم دعلمي فیوضاتو دایره محدوده نه وه،نه یوازې ورڅخه دارالعلوم دیوبندکې داخله ترلاسه کوونکي طالبان فیض یاب اوسیراب کېدل، بلکې دنوموړي له ګرانبیه علمي

تصنيفاتو او تاليفاتو نه هرخاص وعام فيض موندلی اوترې سيراب شوي دي، تـــردې چـــې دمســـلمانانوسربيره نامســلمانانو هــم دګرانبيــه علومــو او څېړنوڅخه يـې استفاده کـړې، همدې غيرمعمولي شان ته په کتـو او وربانـدې داعــتراف کولــو لړکــې دهندوســتان ولسمشر لخـوا پـه نـوم يـې مډالونـه اوجـايزې اعـلان شـوې،که څـه هـم د نوموړي ذات اومقام د هـرډول مډالونو اوجايزو څخه په څو واره لـوړ او عـالي وو،خو بيا هم ددې لپاره چې پـه عمـوم کې دمسلمانانود مډال ترلاسه کوونکـو اوجـايزه اخيسـتونکوپه کتـارکې ځـان شـمارکړي، دهنـدي حکومـت لخـوا ورکول کيدونکي امتيازات يـې قبـول او ترلاسه کړل

مولانا پالنپوري رحمه الله ته،اللـه تعالی چې څنګـه پـه درس وتـدريس او دقلــم وقرطــاس پــه ميــدان کــې ستراستعداد اوقوت بښلی و،همداسـې يــې دشخصــيتونو جوړولــو هــنرهم ورښودلی و،دشـاګردانو پـه وينايې:نـه يواځې دخپلو شاګردانودتربيې په اړه بـه تــل فکرمنــد اولالهانــد و،بلکــې دټولودينې طالبانواوعلماوو دتربيـې پـه فکراوسوچ کې به هميشه فکرمند و

دحضـرت رحمـه اللـه دوفـات وروسته د هغه ديوفاضل اولايق شـاګرد يو مضـمون مـې لـه نظره تيرشـو چـې دتدريس په اړه يې خورا منفـرد ،خـاص ضـوابط او اصـول درلـودل او پـر هغـو ترپايـه تينـګ ولاړو، دتـدريس طـرز، لهجه او طريقه يې له نورو استادانو اوعلماوو له طريقو منجونو په نسبت زياته رابنکونکې اوپه زړه پورې وه،نا شونې وه چې يو طالب دې په درس کې ځان ناسوب کـړی و،دترمـذي شريـف عبارت ويلو لپاره يې دهر درسي کال پيل کې خولايق طالبان خپل کورته ور بلل، او لـه هغـوی نه يې فرداً ،فرداً عبارت اوريده،کومو چې به د صحيح عبارت ويلوترڅنګ د خواږه اوازونـه هـم لرل،دهغوی په برخه يا نصيب دترمذي شريف عبارت رسيده،او چې دکومو اوازونه به خواږه نـه وو هغوی دجامع الترمذي له عبارت ويلو محروم کيدل او يواځې له سماعت څخه بـه مستفيد وو

دوخت د ارزښت نهايتي قدردان و،ماښام لمانځه وروسته به متصل دحديثو درس شروع کاوه،طالبـانو د مفتـي صـاحب دنيکمرغـه ورود څخـه ورانـدې ځانونـه درسـګاه (تحتـاني دارالحديث) ته رسول او هلته دهرطالب لپاره د مفتي صيب رسيدوڅخه ورانـدې پخپـل ځـای ناسته لازمه وه،مفتي صيب له راتلوسره سـم درس شروع کـاوه اوبيامجـال نـه و چـې چـا نقـل وحرکت کړی وای،دماسخوتن لمانځه پورې يونيم سـاعت يـې پخپـل منفرداسـلوب او انـداز د نبوي احاديثو اوعلوموترې (طالبان) سيرابول،په خاصه توګـه دهرکـال د پـای سـبق يـې طالبـانو لپاره نه هيريدونکی سبق و،په هغه ورځ به دسبق ويلوانـدازاوآهنګ بـه يـې دومـره لـه تـاثيره ډک وچې لوی شمير طالبان به يې دارشاداتو په ليکلوبوخت وو، اوځينوبـه پـه ريکـاډ يـا ثبتولـوسره کوښښ کاوه چې ځانوسره يې خوندي کړي او نوربه ورته ښه پوره متوجه اوځيرناست وو

دفراغت وروسته عملي ميدان کې طالبانو ته چې دکومو آلاتواو اسبابو ضرورت راځـي، دهغو دپيداکولو اوتيارولو په باره کې يې هم طالبانوته ګټورې لارښوونې اومشورې ور کـولې، په وروستي وينـاکې يې طالبانوتـه د نوروګرانبيـه نصـحيتونو ترڅنـګ دمدرسـوپه نـوم د مروجـه چندوکولوڅخه داجتناب توصيه کوله اوپه ښکاره يې وربانـدې تنقيدکاوه،په خاصه توګـه نـاقص الاستعداد طالبانوڅخه يـې دمدرسـې داهـتمام منصـب دنـه قبلولـو پـه اړه عهـد اخيسـته،ځکه دحضرت صيب په اند: داهتمام منصب په اوربانـدې بره د تګ کولو مترادف عمـل دی اوفرمايـل يې:که په يوچا کې داسې «کواليټي» شتون ولري؛هغوی دې په شـوق سره اهـتمام قبلـوي! کنـه ځان دې ترې ساتي!ددې پوښتنې په ځواب کې چې « تبليغي جماعت کې دعلـماوو اوطالبـانو ګډون څـومره مفيـد اوڅـومره مضر دی؟» فرمايـل يې:کـوم طالبـان چـې جيـد الاسـتعداد دي، دفراغت وروسته په سملاسي توګه دهغوی تبليغ ته تللو پر ځای غوره داده چې دتخصصاتو پـه برخوکې وختونه ولګوي،هو! هغـه طالبـان چـې متوسـط اسـتعدادلري، دفراغـت وروسـته دې هغوی درس وتدريس ته مخه کوي اوکوم چې ناقص الاستعداد دي هغوی بايد مساجدوته مخه کړي اوهلته دامامت اواذان چارې سمبال کړي

مولانا پالنپوري فقيه النفس و،فقه چې په اصل کې دقران وحديث لـه پيژنـدنې وروسـته د هغونه دمستنبط کړی شوو مسائلومصدر او سرچينـه ده،پـه کـې اللـه تعـالی مرحـوم تـه علمـي افاقيت ښنلی و،دنوموړي هـم عصرعلماء اعـتراف لـري چـې نومـوړي پـه کـوم انـدازپخواني مختلف فيه مسائل تشريحول اودحنفي فقهې دترجيح وجوهات يې دقرآني ايـاتونو اواحاديثوپـه

دي،دروژې میاشتې په ( ۲۵ مه) نیته یې وفات هم یقیناً لوی سعادت دی، په وفات سره یې نه یوازې دمفتي صیب کورنۍ یادارالعلوم دیوبندته ستره صدمه ورسیده بلکې ټول اسلامي امت ته یونه جبرانیدونکی زیان واوښت، الله تعالی دي جبیره کړې او دمرحوم درجات دي بلند کړي

رازم دیته څنګه چې حضرت مولانا مفتي سعید احمدپالنپوري رحمه الله دعصر یو بې جوړې مفسر اومحدث و،په ورته توګه علم کلام اوعلم فقه کې هم ممتاز اومنفردمقام لاره،شیخ الحدیث مولانا زاهدالراشدي مدظله العالي دمرحوم په اړه خپل تاثرکي لیکلي: ما یوځل دعلماوو مجلس کې عرض وکړچې موږ د درس نظامي مروج نصاب کې دعلم کلام په موضوع یومهم کتاب «شرح العقائد» لولو،کوم چې دیوناني فلسفي له املـه د پیدا شویواعتقادي اوکلامي مباحثو لړکې داهل سنت دعقائدو له اساس څخه خبریدو لپاره نهایت ضروري دی،خونن سبا چې موږدکومونویوعقایدو او افکارو سره مخ یو،د هغو زیاتره برخه مغربي کلتور اوثقافت زیږولې ده،نو دنوي مغربي فکر او فلسفې اړوند چې کوم نوي مسائل رامنځته شوي دي،دهغو په رد یاځواب کې دشرح العقاید دوهم ټوک(جلد) لیکلو ته اړتیا او دهغه دتدریس ضرورت دی، مجلس کې ځینو ملګرو وپوښتل چې دشرح العقاید نوی جلدبه څوک لیکي؟ما عرض وکړ زما په نظراوس مهال دري مشران علماء شته ، په هغوی کې هریو داکارپه سمه اوپوره توګه سرته رسولی شي ( ۱) حضرت مولانا مفتي محمدتقي عثماني دامت برکاتهم(۲)حضرت مولا نا مفتي سعید احمدپالنپوري(۳) حضرت علامه ډاکټرخالدمحمود رح. د دوی نه دوه وروستي په نیږدې ورځوکې له موږ نه رخصت شول، هرچې حضرت مولانا مفتي محمدتقي عثماني دی هغه لپاره دمبالغې پرته مسلسل دعاکوو چې الله تعالی دي ورته داسلامي امت درهنمائي لپاره صحت وعافیت ورکړي اوترډیره دې الله سلامت لري

لنډه داچې حضرت مولانا مفتي سعید احمد پالنپوري رحمه الله دموجوده علماوو په منځ کې یوممتازدیني، عالم، محدث، محقق او متکلم و، همیش یې په مهمو اوسختوعلمي قضایاوو کې دمسلمانانوعلمي رهنمائي په ډیره ښه توګه کوله،دمرحوم په بې شمېره علمي او تصنیفي کارنامو کې یو غوره مثال اوکارنامه چې دهغې په سرته رسولو یې دټول امت په علماوو احسان کړی دی، هغه دحضرت امام شاه ولي الله دهلوي دعدیم النظیرتصنیف «حجة الله البالغه» عربي او اردو کې څلور ټوکه داسې جامع شرح (رحمة الله الواسعه) لیکل دي چې په برکت یې نن هرعالم اوطالب ته دحجة الله البالغه علمي زخیرې ته لاس رسی لري،الحمدالله! یقیناً دا د نوموړي لپاره ستره صدقه جاریه ده،او دمبالغې پرته په رحمة الله الواسعه کې چې مرحوم په کوم عالمانه اندازاو محققانه شان سره دحضرت شاه ولي الله دهلوي ژورعلوم اومعارف تشریح او توضیح کړي دي له دینه وړاندې بل چا نه وو کړي

الله تعالی دي دمرحوم ټول حسنات قبول اوسیئات معاف کړي،بیرته پاته کورنۍ، شاګردانو اولاروپانوته دي دحسناتوسلسلې دجاري ساتلو توفیق ورکړي آمین یارب العالمین

رڼاکې ثابتول، خورا جالب اوقناعت بښونکي وو، اوپه نویوعصري مسائلوکې دامت رهنمائي چې په څومره ښه شان اواندازسره کوله، دېیرولپاره دغبطې وړوه،همدا اوس دکرونا خاتمې لړکې «ثریا» ستوري راختو وروسته، دناروغی دخاتمې سبب باره کې کومه غلط فهمې خوره شوې وه، په ښکاره یې هغه رد کړه اوپرې مفصل محدثانه بحث یې وکړ(کوم چې په یوټیوب اونورو خواله رسنیوکې هم شته) اوپه دې باب کیدونکي شکوک اوشبهات یې ردکړل، غرض دا چې په پخوانیو مختلف فیه فروعي مسائلوکې دکلکې رایې ترڅنګ د شرعیه نصوصو وړاندې کول او د اختلاف رفع کولو برخه کې د ازل (قسام) ویشونکي ورته غیرمعمولي مهارت اوقدرت ورکړی و، دتیرو ٦ لسیزو راهیسې پرلپسې شغل یې درس وتدریس و، تیرو۴۸ کلو راهیسې یې د دارالعلوم دیوبند مسندته زینت ښښلی و،په ۲۰۰۹ زکېددارالعلوم دیوبند دصدرالمدرسین اوشیخ الحدیث مولانا نصیر احمد خان رحمه الله دوفات وروسته د دارلعلوم صدرالمدرسین اوشیخ الحدیث غوره شو، نوموړی پخپل ذات اوشخصیت کې جامع هستې وه، دبسته یوادارې اویوجماعت یې حیثیت لاره،کاشکې! دنبوي احادیثو دتدریس سلسله یې نوره هم جاري پاته وی خو د قدرت فیصلې په وړاندې انسان بیوسه اوکمزوری

# شهید منصور؛ هغه مشر

## چې اسلامي امارت یې په سختو حالاتو کې وځلاوه!

عنایت الله خاموش



څلور کاله پخوا په همدې ورځ، د افغانستان د خپلواکۍ او ازادۍ لپاره یو مهم څراغ گل شو. څلور کاله مخکې په همدې ورځ د اسلامي امارت دوهم، معنوي او عملي مشر؛ ملا اخترمحمد منصور شهید شو او اسلامي امارت یې له نظامي، سیاسي، اداري او... لحاظه یتیم کړ. دا ورځ که څه هم د افغانستان په تاریخ کې د مبارزینو لپاره نه جبرانېدونکې ده او یو مهم لېډر یې له لاسه ورکړی؛ خو لله الحمد دې مشر د امارت او مبارزینو لپاره داسې کارنامې او اصول په میراث پرېښودل، چې د اسلامي امارت تر ژوندون به د شهید منصور په نوم ثبت وي.

شهید منصور د اسلامي امارت هغه مشر و چې د خپلې سیاسي و نظامي دور اندیشۍ پر مټ یې پوره شپږ کاله د اسلامي امارت د مطرح تیا ترڅنگ داسې اداري، سیاسي او نظامي چارچوب جوړ کړ، چې له کبله یې د هیواد په هره سیمه کې، د هر قوم اتباعو د اسلامي امارت په هینداره کې ځان ولید او د خپلو داخلي مخالفینو سربېره یې د نړۍ اکثریت پردې قانع کړ، چې د اشغالگرو په وړاندې د دوی مبارزه په حقه ده او دوی به دا مبارزه د خپلو وینو په بدله تر پایه رسوي.

د شهید منصور صاحب په اړه که هر څومره خبرې وکړو او کارنامې یې بیان کړو؛ مگر د ده عظیم شخصیت او سپېڅلې مبارزاتي عقیده یې پکې نشو ځایولای؛ ځکه شهید منصور د اسلامي امارت هغه زعیم او مشر و، چې اسلامي امارت یې په سختو حالاتو کې وځلاوه!

ځکه؛ کله چې په ۲۰۱۰ م کال کې د امیرالمؤمنین مرحوم ملامحمد عمر مجاهد له لوري ده ته د مرستیالي او د اسلامي امارت د عملي مشرتابه دنده وسپارل شوه، په هغه مهال افغانستان او په ځانگړې ډول اسلامي امارت تر سخت فزیکي او تبلیغاتي فشار او یرغل لاندې و او دلته په داخل کې د اسلامي امارت د ماتولو لپاره پراخ تبلیغاتي وسایل او نوي نظامي پرسونل ځای پر ځای شو. گډ دښمن هغه مهال د اسلامي امارت د کمزوره کولو، وېشلو او ماتولو په موخه، له هرې ممکنه لارې استفاده وکړه؛ خو د شهید منصور تقبله الله د ځیرکتیا له برکته دا هر څه شنډ او له ماتې سره مخ شول.

همدارنگه کله چې د امیرالمؤمنین مرحوم ملا صاحب له وفات وروسته، د اسلامي امارت معنوي و عملي چارې ده ته وسپارل شوې او ورسره د زعیم په توگه بیعت وشو. هغه مهال هم اسلامي امارت له نویو ننگونو سره مخ و. که له یوه لوري د ځینو قدرت طلبه د اسلامي امارت د پلویانو بغاوت، د داعش ډلې رامنځته کېدل و؛ خو بل پلو ته بیا اشغالگرو هم خپل نظامي و تبلیغاتي قوت ته پراختیا ورکړه او افغانستان ته د نویو تیریگرو عسکرو سربېره یې دلته نوي ډلې او ملیشې هم پراخې کړې او هر ځای یې د اسلامي امارت په وړاندې فکري و نظامي جگړې ته زور ورکړ. دا ځل هم شهید منصور صاحب د خپل ځیرکتیا له مخې گډ دښمن (اشغالگرو/ گوډاگیانو) پر مخ تینگه څپېړه ورکړه او پر دښمن یې داسې گوذارونه تنظیم کړل، چې له هغوی څخه یې درک ورک کړ. تر ټولو بده یې لا دا چې همغه وخت یې امریکایي ولس ته پیغام ورکړ، چې په افغانستان کې ستاسو جنگېدونکي عسکر ظالمان دي او پر موږ یې یرغل کړی او هغوی یې پر دې قانع کړل ترڅو پر خپلو چارواکو فشار راوړي چې افغانستان پرېږدي.

د شهید امیرالمؤمنین په اړه که هر څومره لیکل او ویل وکړل شي، خو د ده کارنامې به خلاصې نه شي. شهید منصور ټول د خاطرو کور و او د دې لپاره چې د شهید منصور صاحب له شخصیت څخه

راتلونکي سیاسي او نظامي افراد یو څه حاصل کړي؛ د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمیسیون ته په کار ده، چې د ده له ملګرو سره اړیکې ټینګې او د نوموړي تول مبارزاتي ژوند او هلې ځلې د یوه کتاب په بڼه راټول او نشر کړي؛ ترڅو راتلونکي نسلونه مو په سیاسي، نظامي او اداري ډګر کې د الګو په توګه استفاده وکړي. ځکه دا پر اسلامي امارت د شهید منصور تقبله الله مسلم حق دی او تول د اسلامي امارت منسوبین باید په خپلو چارو کې د شهید امیر له سیاسي، نظامي او اداري چوکاټ او مکتب څخه استفاده وکړي!

په پای کې د شهید امیرالمؤمنین ملا اخترمحمد منصور په ګډون د اسلامي امارت او ټول مسلمه امت شهیدانو ته د الله تعالی له دربار څخه د لوړو درجو او د دوی د ارمانونو د پوره کیدا غوښتونکی یم.

# له شیطان سره مکالمه او خبرې

ژباړه: عبدالرحمن محمود

عبدالله بن آدم وايي له شیطان سره مې په تکه توره شپه کې مجلس وکړ، چې کله مې د سهار آذان واورید اراده مې وکړه چې مسجد ته ولاړسم شیطان راته وویل ویده شه، شپه لا پاتې ده.

ما ورته وویل چې ویریږم هسې نه چې لمونځ راڅخه قضاء شي، ده راته وویل داسي ژر نه قضاء کیږي، د لمونځو وختونه ډیر پراخه دي.

ما ورته وویل د جماعت لمونځ به را څخه پاته شي، ده راته وویل د خدای په عبادت کې پر ځان ډیره سختي مکوه.

کله چې له ځایه پورته سوم لمر راختلی وو، شیطان بیا په غوږ کې راته وویل چې غمجن کیږه مه، نن ټوله ورځ در ایله ده، بیا به یې قضاء وکړې.

له ځانه سره کښیناستلم چې د خدای تعالی ذکر وکړم، شیطان راته د فکرو او سوچونو دفتر خلاص کړ، ورته و مې ویل له دعاء څخه دي مشغوله کړم، ده راته وویل ماښام ته یې پریږده، قصد مې وکړ چې توبه وکاړم، ده راته وویل له ځوانیه خوند واخله مزې او چړچې وکه عمر دې ډیر دی بیا بـه توبـه وکاږې، بیا مې قصد وکړ چې قرآن یاد کړم او تلاوت یې وکړم، ده راته وویل په غزلو او سرود دې طبعیت خوشحاله وساته، ما ورته وویـل چـې سرود خو حرام دی، ده راته وویل چې د علماؤ اختلاف پکښې دی، ما ورته وویل چې د حرمت أحادیث یې موجود دي، ده راته وویل چې دا أکثره ضـعیف حدیثونه دي.

یوه ښائسته نجلۍ مې ولیده سترګې مې پټې کړي، شیطان راته وویل چې کتل څه پروا کوي، ددې نجلۍ په جمال کې ښه تفکر وکه، تفکر خو حـلال دی. بیا مې قصد وکړ چې خلګو ته وعظ او نصیحت وکړم، ده راته وویل ګوره ځان مشهوره کوې، او شهرت د فساد تهداب دی.بیا مـې ورتـه وویـل چې ته خلګ څنګه ګمراه کوې؟ ده راته وویل چې په شهواتو او شبهاتو سره او د غفلت په شیانو سره او أمیدونه ور آچوم او سرود په آوروم.

ما ورته وویل چې حاکمان څنګه ګمراهان کوې؟ ده راته وویل چې وینو ته یې تږي کوم، د علماؤ سپکاوی ته یې هڅوم، د حکیمانو له نصیحت څخه یې آړوم او د بې عقلانو تصدیق په کوم.

بیا مې ورته وویل چې ښځې په څه بې لارې کوې؟ ده راته وویل چې کله د کوره وځي و زینت او سینګار ته یې هڅوم، د خپل خاوند و نافرمـانۍ تـه یې تشویقوم.

بیا مې ورته وویل چې علماء څنګه بې لارې کوې؟ ده راته وویل: په غرور او کبر او حسد أو خودبینۍ سره.

بیا مې ورته وویل چې عام خلګ څنګه بې لارې کوې؟ ده راته وویل په غیبت او بهتان او شیطانت سره.

ما ورته وویل چې ځوانان څنګه ګمراه کوې؟ ده راته وویل: په حرام محبت او عشق سره، په سرود او غزلو سره، او په حرام کار کولو سره.

بیا مې ورته وویل چې کوم شی دې قاتل دی او ته ډیر په ذلیله کیږې؟ ده راته وویل چې " آیة الکرسي " نفس مې را تنګوي، زنداني کوي مې، هره بلاء را باندې مسلطه کوي. ما ورته وویل له چا دې ډیر ښه راځي؟ ده راته وویل له بربنډو ښځو، د سرودچیانو او ډمانو څخه.

ما ورته وویل له چا دې ډیر بد کیږي؟ ده راته وویل له هغه خلګو چې لمونځ په مسجد کې کوي.

د مجلس په آخر کې مې وویل أعوذ بالله منک. په الله رب العزت له تا څخه پناه غواړم.

شیطان هم را څخه ورک سو...

الله تعالی دې موږ او تاسو د شیطان له غلبې او سلطې څخه وساتي. المصدر: کتاب المقامات لعائض القرني.



# ای شهید امیرالمؤمنینه!

سبل شرزي

څلور کاله وړاندې په همدې ورځ (دجوزا لومړۍ نیټه) داسلامي امارت زعیم امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور صاحب دیرغلګرو په ډرون برید کې شهید شو. انا لله وانا الیه راجعون!

شهید امیرالمؤمنین منصور تقبله الله داسلامي امارت په رهبرۍ، تنظیم، پیاوړتیا او پراختیا کې خورا لوی او نه هېریدونکی رول ولوباوه، له همدې امله دښمن ډیره هڅه وکړه چې زموږ دغه مخلص او مدبر رهبر جرحه کړي او په تعقیب یې د ځان په وړاندې جهادي بهیر ټکنی کړي.

د منصور صاحب دنیابت او زعامت پر مهال اسلامي امارت په نظامي او سیاسي ډګرونو کې د پخوا په پرتله پیاوړی شو، آن دښمن هم اعتراف وکړ چې اسلامي امارت داسې یو حقیقت او قوت دی چې پر وجود یې سترګې نشي پټیدلای.

دښمن ته دمنصور صاحب فعال او جرار شخصیت د زغملو نه و، له فعالیت او موقف څخه یې ډاریده،له مختلفو لارو یې د نوموړي د ترور هڅې وکړې، خو کومه نتیجه به یې ور نه کړه،بالاخره د سپینې ماڼۍ د تور پاچاه( اوباما) په مستقیمه قومانده د افغان ولس دخپلواکۍ امام( منصور صاحب) په نښه او شهید کړل شو.

د منصور صاحب تر شهادت وروسته امریکایي مطبوعاتو ولیکل چې (منصور) دامریکا سره دښمنۍ کې ډیر شدید او فعال و، پر امریکایي ځواکونو یې ډیر خونړي بریدونه رهبري کړي وو او داسې پلانونه یې درلودل چې پر امریکایي ځواکونو نور ورته بریدونه هم وکړي.

منصور صاحب یو بیان کې ویلي چې:( موږ ته تر ژوند خپل اهداف لومړیتوب لري، که موږ ژوندي نه یو خیر دی، خو مهمه داده چې زموږ مبارزه روانه وي)

منصور صاحب خپل قول په عمل کې ثابت کړ، ځان یې کباب- کباب کړ، خو دامارت خپلواک دریځ یې دچاه د فرمایش قرباني نه کړ. نن دادی دمنصور صاحب له شهادت څخه څلور کاله وروسته نه یوازي داچې داسلامي امارت په مشرۍ دافغان ولس مبارزه روانه ده، بلکې تر پخوا لا پیاوړې او پراخه شوې هم ده.

ای شهید امیرالمؤمنینه! نن که ته زموږ په منځ کې نه یې، خو داسلامي امارت واحد صف لا پیاوړی شوی، مبارزه یې پراخه شوې او که خدای جل جلاله کول نږدې ده چې زموږ لوی ارمان او هدف( دګران هیواد خپلواکۍ او د اسلامي نظام قیام) پوره شي.

ان شاءالله العزیز

شهید منصور صاحب څو بعدیز شخصیت درلود، سړی نشي- کولای په یوه لیکنه کې دنوموړي مواصفات او موفقیتونه بیان کړي، منصور صاحب د یو تکړه قوماندان او جنرال په توګه په نظامي ډګر کې د ښې پوهې، تجربې او لاسته راوړنو څښتن و، خو پر دې سربیره یې له پیچلو سیاسي مسائلو سره د یو ورزیده ډیپلوماټ په څېر چلند کاوه او جهادي صف یې په داسې ډول مدیریت کاوه چې ددښمن هغه هڅې او هیلې یې( چې اسلامي امارت کمزوری کړي او یا انشعابونه پکې رامنځته کړي) په اوبو لاهو کړې.

أمیر المؤمنین عمر (رضي الله عنه) ته یو کس راغی چې یوه سترګه یې ویستل شوې وه. عمر (رضي الله عنه) ورته وویل: خپل سیال به راولې.

سړي ورته وویل: آیا ته زما دې حالت ته ونه قهرېدې؟

عمر (رضي الله عنه) ورته وویل: کېدی شي تا د خپل سیال دواړه سترګې ویستلې وي.

کله یې چې سیال حاضر شو، د هغه دواړه سترګې ویستل شوې وې.

بیا عمر (رضي الله عنه) وویل: کله چې د دویم کس خبرې واورېدل شي، نو روغه پرېکړه کېدلی شي.





# هغه جومات چې اتوم هم وران نه شو کړای

لیکنه: حمیدالله حمیدي

د کوبه جومات په جاپان کې لومړنی جومات دی، چې د (کوبه) په ښار کې موقعیت لري. دغه جومات په ۱۹۲۸م کال کې د کوبه ښار په (اکایاماته دوري، چو - کو) سیمه کې جوړ شوی، چې لګښت یې یو شمېر اسلامي هېوادونو پرې کړی دی.

د کوبه جومات په هندي سنتي سبک د (یان یوزف اشواګرا) معمار پر لاس ودان شوی دی.

د جاپان پر دوو ښارونو (ناګازاکي) او (هیروشیما) د امریکا تر اتومي برید وروسته د کوبه ښار هم زیان ولید او ډېری برخې یې ورانې شوې.

د کوبه جومات شاوخوا سیمې له خاورو سره خاورې شوې، خو د جومات دېوالونو یوازې درزونه وکړل او ښیښې یې ماتې شوې.

د بمبارۍ له کبله د جومات بېروني دېوالونه لوګیو تور کړل. هغه جاپاني عسکر، چې د کوبه جومات په تلخونه کې یې پناه اخیستې وه ژوندي پاتې شول، ان دا چې جومات د مسلمانانو او کافرو دواړو لپاره د امن پر ځای بدل شوی و.

د جنګ له پای ته رسېدو وروسته یو شمېر اسلامي هېوادونه سره جرګه شول او د جومات د بیا رغولو لګښت یې پر غاړه واخیست. دغه جومات له یوې بلې پېښې هم روغ وتلی. په ۱۹۹۵م کې په جاپان کې د شلو ثانیو په اندازه زلزله وشوه، چې لږ تر لږه ۶۴۳۳ تنه جاپانیان یې مړه کړل او د ښارونو ډېری برخه ونړېدې، خو د کوبه جومات هماغسې پر خپل ځای روغ پاتې شو.

# عمر- عزیز

یاد مصعب فرزند عمیر راکه میکنیم....

وقتی مسلمان شد خانواده ثروتمندش همه امکانات را از او سلب کردند...

چنانکه وقتی به شهادت رسید لباسش به اندازه ای نبود که بدنش را بپوشاند و پاهای او را با برگ پوشاندند....

او قبل از اسلام چنان شیک می پوشید و عطر میزد که اگر از کوچه ای عبور می کرد بوی عطر خاصش را همگان می شناختند....

یاد خباب که میکنیم...

وقتی که مسلمان شد بدنش را بر روی گدازه های آتش قرار می دادند تا جایکه گدازه ها را، چربی کمرش خاموش میکرد....

یاد سمیه که میکنیم...

آن زن پاک دامن که دست و پایش را برچهارپایان بستند و در جهت خلاف حرکت دادند، صدای فریادش هنوز گوش تاریخ را می خراشد که تحت چنان فشاری جان به خالقش می سپارد...

یاد بلال که میکنیم...

که هنوز هم فریاد احد احدش را زیر تازیانه ها و سنگ سنگین روی سینه اش در آفتاب داغ حجاز می شنوند...

چه آسان شده مسلمانی و من نمازم به لطف خواب شیرین قضا می شود...

شاید قدر دین را نمی دانم، قدرزیبایی های اسلام را نمی دانم ، لذت عبادت را درک نمی کنم...

چون اسلام را در اولین روزهای تولدم بی هیچ زحمتی به من هدیه دادند...

شاید اگر نمی توانستم به آسانی قرآن در اختیار داشته باشم، تلاوت کنم، در محافل ایمانی بنشینم و فرصت نماز در مسجد داشته باشم...

اینگونه نمازم قضا نمی شد...

...قرآنم... بر لب طاقچه اسیر جلد و رحل نمی گشت و غریب واقع نمی گردید...




# لمــرین پېغـام

مفـــتون

خـاتمـه به د فـتنې په تـنـدي لـیکم
الجـهاد به د کـعبې په تـنـدي لـیکم

خپلواکي، اتلـتوب، پت وفا او فتحـــه
مجـاهـد ته د شـملې په تندي لـیکم

هـــدیره د یـرغـلګـرو یې هـــپواده
دا جـمله د امـریکې په تندي لـیکم

په ورغـوي نوم لـیکل څه هنر نـه دی
طالب جان د زمـانې په تندي لیکـم

زه یوائې ستابنده یم ته مې رب یې
بس هـمـدغـه کلـیمې په تـنـدي لیکم

حاکمیت د سپین بیرغ دحال غوښتنه
دا لمریـن پېغام دشپې په تندي لـیکم

څو د ننګ تـپې ځوانانو ته ملالې!
سـتا د ورکـې مقبرې په تـنـدي لیکم

په تـندي د زنګـدن خوله در یاد کـړه!
دا الـفـاظ د آئـینې په تـندي لـیکم

وخت به راشي چې سلطانِ ایوبي به
د اقـــصی د مـنارې په تـندي لـیکم

د حـریت ناوې رانجه راځـني غـواړي
عشقه! نور دې دلمبې په تـندي لـیکم

د کـاشغر د ګـل په پـاڼو به مفـتونه!
امـارت د غـرناطـې په تـنـدي لیکم

ارسالی فاضلی

# رسم دنیا

رسم دنیا در همین است؛ آنکه آمد رفتنی‌ست
بعـد رفـتن نـام نیکـت بـر زبان‌هـا مانـدنی‌ست

تـا تـوانی خلـق را از خـود مرنجـان بـا سـخن
آنکـــه بـــالاتر نشـــیند آخـــرش افتـــادنی‌ســـت

عمـر جانـت گرچـه عمـرِ نـوح هـم باشـد ولـی
شیشـه‌ی عمرِ گرانـت عاقبـت بشکسـتنی‌سـت

تکیـه بـر ایـمان خـود کـن؛ همـره شیطان نشـو!
ریسـمانِ دسـتِ شیطان ظـاهراً پوسـیدنی‌سـت

ثروتـت چنـد روزی، چـون امانـت نـزد تـو اسـت
عاقبـت ثـروت بـه دسـت وارثـان بسپاردنی‌سـت

دل مبنـد بـر مـالِ دنیـا؛ مـالِ دنیـا بـی‌وفاسـت
خرقه‌ی زَرّ هـم بپوشی؛ سِیم و زَرّ نـابردنی‌ست.

# عقیده

کوچی

زه د اوښکو، اوښکو سترګو یو تصویر یم
غریو نیولی یم، سلګۍ وهمه، ویریم

پورته نه ګورم د ستورو شمار مې پرېښی
له مودوستا د راتلو لارې ته ځیریم

پرواګیر د چا د زَر او د زُور نه یم
زه آزاد د نړیوالو له تاثیر یم

ډیر د خپل حُسن پر جیګو پرواز مکړه
ما خو پیژنې د یو ذات پرواګیر یم

ته چې ستغې سپورې کاندې او زه مُسک یم
زه بندي په محکمه د خپل ضمیر یم

زه وجود د مسلمان یمه بې حس یم
سم وهلی چا د نیمې ملا په تیر یم

له کینې کوهي ته ورونو چې ګوزار کړم
د کنعان په خزانو ځکه وزیر یم

فرعوني غرور به ستا په نیل لاهو کړم
خیر که ناست د ونې سیوري ته فقیر یم

خیال مې واخلي د هجرت د ژوند کوڅو ته
لوبې، شوروي، د همزولو وړکو میریم

بلا شپې کیږي کوچیه سپینه یاره
ستا رمه، رمه یادونو ته شو ګیر یم

# دعایم کن

(سنگ صبور)

سحرگاهی اگر سجاده وا کردی دعایم کن
بساط گریه در خلوت بپا کردی دعایم کن

دلت دریاست میدانم که پیشش آبرو داری
نشستی با خدای خود صفا کردی دعایم کن

کسی این گوشه ی دنیاست محتاج دعای تو
به تسبیحت اگر ذکر خدا کردی دعایم کن

پر از حرف و پر از دردم، به رسم عاشقان ای دوست
دلت لرزید و یادی هم ز ما کردی دعایم کن

به هر در میزنم بسته، همه درها به روی من
خدا را زیر لب امشب صدا کردی دعایم کن

منم آن روسیاهی که خجالت میکشد از خود
شفاعت از من غرق خطا کردی دعایم کن

غریب افتاده ام اینجا کسی سنگ صبورم نیست
بحق هر غریبی که دعا کردی دعایم کن

لا اله الا الله محمد رسول الله

# ولې طالبانو د اوربند اعلان په ځنډ وکړ؟

لیکوال احمد عزام

دوه کاله دمخه چې طالبانو د اولس په غوښتنه کوم اوربند اعلان کړ له شک پرته چې تر یو حده یې خپل اهداف هم لاسته راوړل د اولس زړونه يې هم را خپل کړل هغه پروپاګنډ چې ګواګی طالبان واحده قومنده نه لري او په څو ډلو ویشل شوي دا او دې ته ورته تبلیغات يې په نطفه کې خنثی کړل

خو دا باید ووایم چې مکار دښمن له هغه اوربند څخه هم سوء استفادې وکړې او څه داسې شوم پلانونه يې په لاره واچول چې د طالب صف پاشلو له اولس څخه واټن ساتلو له اوربند څخه په استفادې هغو سیمو کې قرارګاوې جوړول چې د طالب د واکمنی لاندې دا هغه اعمال ول چې فریب کار دښمن انجام کړل او یا يې د انجامولو په کش مکش کې ول

دغه اوربند اعلانولو کې که له یوې خوا طالبانو خپلو لاسته راوړنو ته توجوکړې خو بل اړخه د دښمن چل فریب ته یې هم د اوربند په اړه خپره کړې اعلامیه کې خپله بیداري څرګنده کړې وه د کابل اداري افراد او چارواکي يې د خپلې واکمنۍ سیمو ته له راتګ او طالبان يې د اداري د واکمنۍ سیمو ته له ورتګ منعه کړي ول همدا ډول لومړی خو دې سوال ته باید ځواب پیدا کړو چې لامل يې څه وه چې طالبانو د اوربند اعلان وځنډاوه او د اختر په شپه يې وکړ ؟

لکه مخکې مو چې یادونه وکړه چې دښمن ډېر مکار دی که چېرته له اختر څخه څو ورځې دمخه یې د اوربند اعلان طالبانو کړی وی احتمال ډېر وه چې دښمن داسې پلانونه طرحه کړي وی چې د طالبانو د بدنامولو نړیوالو ته سولې ضد معرفي کولو ، د خپلې هغې ادعا د ثابتولو چې دلته له طالبانو پرته نورې هم شل ډلې دي پوره کوښښونه به يې کړي وی

دا چې طالبانو د اختر په شپه اعلان د اوربند وکړ ځکه طالبان پوه ول چې اوس پخوانی وخت نه ده بلکې انټرنیټي زمانه ده چې تر سهاره ټوله نړی خبرېږي

بل دا چې دښمنان هم دومره غښتلي نه دي چې تر سهاره شوم پلانونخ جوړ کړي او تر څو یې چې جوړوي د اختر ورځې او د اوربند موده هم ختمیږي چې تر ډېره طالبان په دې پلان کې بریالي شول دښمنان يې ونه توانېدل چې داسې پلانونه جوړ کړي چې د بد نامۍ او یا تلفاتو سبب يې جوړ شي

دا چې ولې يې خپل ځواګونه د دښمن ساحاتو ته له ورتګ او هغوی خپلو ساحاتو ته له راتګ منعه کړي؟

دوه کاله دمخه چې اوربند شوی وه کله چې طالبان اداري واکمنۍ سیمو ته لاړل طالبان يې په مکارانه ډول یې استقبال کړل هغوی ته ګلونه ور واچول پسونه يې ورته پاخه کړل او نور داسې اعمال يې په مخکې ورته تر سره کړل چې طالبانو ته وښايي چې ګواګی مونږ خو د سولې غوښتونکي یو ستاسو په راتګ خوښیږو او تاسو افغانان بولو دا خو ستاسو مشران دي چې جګړې ته مو هڅوي

دا چې طالبان هم انسانان دي نو خامخا انساني طبیعت داسې ده چې نرمي خوښوي که څه هم ځیني وخت د چا لخوا ستا لپاره نرمي ستا په زیان وي خو انسان نه پوهیږي چې یو له اوقاتو څخه هم هغه د اوربند موده وه چې کابل اداري وښوده

طبیعي ده چې طالب به لګ له دې نرمۍ څخه متاثره شوی وي ولې څوک يې نه شي ثابتولی چې له هغه اوربند څخه روسته دې طالبان د کابل اداري ته تسلیم شوي وي برعکس د کابل اداري په سلګونو چارواکي افراد طالبانو ته تسلیم شول آن پوستې او بیزونه يې ورته تخلیه کړل

طالبانو هم له تیر څخه په تجربې خپل ملګري له ورتګ او هغوي له راتګ منعه کړي ول تر څو د دښمن لـه هـر ډول شوم پلانـو طالبان او اولس ترې په امن کې وي دوه کاله دمخه چې طالبانو کوم اوربند وکړ ډېرو جهتو د اوربند کولو چیغې وهلې دا چې طالبـانو هغه اوربند د اولس په غوښتنه یې وکړ خو مغرضو رسنیو پوچ تبلیغات پیل کړل کله یې ویل چې دا یې اداري لخوا فشار پرې وه کلـه ویل چې په یو شمېر ګاونډيې هېوادو امریکا او د کابل حکومت پرې فشار راوړ تر څو طالبان اوربند کولو ته اړ کړي

دا ټول تورونه بې اساسه او بې بنیاده ول دا خو له اوربند دمخه هیڅ کوم جهت د اوربند غوښتنه نه وه کړې دا د طالـب ابتکـار وه او طالب ثابته کړه چې تیر اوربند مې هم د اولس په غوښتنه وکړ او دا هم طالب یو ځل بیا ثابته کړه چې مونږ خو د مختاره یو.



هنـوز ایـن چـرخ نیلـی کـج خـرام اسـت
هنــوز ایــن کــاروان دور از مقــام اســت
ز کـــار بـــی نظـــام او چـــه گـــویم؟
تــو میــدانی کــه ملـت بــی امـام اسـت

"اقبال"

# آیا پوهیږئ! دکتور ایاز چا شهید کړ؟

دکتور هاتف مختار

دا خو یو حقیقت دی چې په جنګ کې د ځینو محدودو کسانو ګټې نغښتې وي خو ملت بیا ټول ترې کړیږي، د امن او خوشالۍ په ارمان هره شپه سبا کوي.

له امریکا سره د طالبانو له تړون وروسته په داخل کې ځیني کړۍ درګرده لګیا دي چې په هیواد کې د سولې راتګ چیلنج کړي او د سوکالۍ د مخنیوي پخاطر هر ډول ناکامه هڅه په کار اچوي.

کله چې په دوحه کې د طالبانو او امریکا ترمنځ تړون لاسلیک شو، له هغې ورځې راهیسې په ځینو کسانو اور لګیدلی او مځکه ځای نه ورکوي، دوی په دې تړون کې د خپلو نفسي خواهشاتو وروستۍ شیبې شماري، په هیڅ صورت نه غواړي چې دا توافقنامه کامیابه شي او اشغالګر دې له هیواده ووځي.

د خپلې پنځه کلنې واکمنۍ د تکمیل پخاطر یې څه وخت مخکې په جنازه برید وکړ، په کابل کې یې د ماشومانو په یو روغتون برید وکړ، په دواړو بریدونو کې لسګونه کسان چې ماشومان هم پکې وو، په شهادت ورسیدل خو د څه لپاره چې دا بریدونه پلان او طرحه شوي و، هغه هدف یې ترلاسه نکړ بلکې برعکس هیوادوالو او نړۍوالو ټولو ګوتې د برید اصلي طراحانو ته ونیولې او هغوی ملامت وګرځیدل.

له تیرو دوو ورځو راهیسې به ځیني راپورونه اوری چې د غربي رسنیو لخوا خپریږي، د طالبانو د مشرانو د وفات خبرونه، ترمنځ یې د اختلافاتو ادعاوې او په افغانستان کې د یوې بلې ډلې راپیدا کیدل چې د دوی په وینا دا ډله له طالبانو راجلا شوې، د امریکا او طالبانو له تړون سره مخالفت لري، او پرون په کابل کې په یوه جهات له بریده به هم اګاه شوي یاست.

دا ټولې هغه هڅې دي چې د کابل اداره او جنګ غوښتونکې کړۍ غواړي په داسې راپورونو او افواهاتو سره د هیوادوالو او نړۍوالو ذهنونه یوځل بیا د جګړې لورې ته سوق کړي ترڅو د ددوی جوجورو ته بیا یو څو دانې ورسیږي.

د کابل په وزیر اکبر خان جهات برید او د دکتور ایاز شهیدول هم د جګړې د اور د تازه کولو په مانا دي، د کابل تبلیغاتي دستګاه به په ټول توان سره دا کار د طالب غاړې ته ورواچوي او په سختو ټکو به یې وغندي خو ملت پوه دی، قاتلین او جنګ غوښتونکي رسوا شوي دي.

څه وخت مخکې به تاسو د حسیب قوای مرکز په نوم د ملي امنیت د پخواني غړي یو ویډیویي کلیپ لیدلی وي، نوموړی په هغه ویډیو کې اعتراف کوي چې ملي امنیت له ما څخه د پیسو په بدل کې غوښتل چې پنځه تنه علماء ووژنم، یو له هغو پنځو کسانو څخه نني شهید دکتور ایاز وو.



# يوه شپه له غازي عبد الصبور سره

انس حقاني

د بگرام په عمومي زندان کې تر ټولو بدترين بلاک (شوالفا) و چې په (جزا يې شو) باندې مشهور و . دلته به هغو بنديانو ته سزا ورکول کيده، کومو بنديانو به چې په عمومي بلاکونو کې ددوی په اصطلاح له قانون څخه سرغړونه وکړه، هغه به دلته له پنځو څخه تر پنځلسو ورځو جزا يې کيدو او کوم کسان به چې ددوی په قانون کې بيخي د رحم وړ نه ول هغه به دلته تر نامعلومې نيټې په مياشتو مياشتو حتی ترکلونو پراته وو .. زه او حافظ صيب عبدالرشيد هم د هغو کمو کسانو له جملې څخه وو چې له دغه ځايه وتل مو تر امر ثاني پوري تړاو درلود.

جزايي شو يو لوی بلاک و چې څلور شپيته تشنابونه يې درلودل، هر تشناب په اوږدوالي تقريبا پنځلس لويشتي اوپه ساره لس لويشتي وو، همدا تشنابونه د جزايي بنديانو بندخوني او استوګن ځايونه وو . په يوه کونج کې به يې د اوداسه او قضاء حاجت ځای و، بل کونج به د بندي د ناستي او ملاستي ځای و . همدلته به لمونځ او تلاوت هم ترسره کيدل د تشنابونو په سر باندې مظبوته پنجره له يوه سره تر بل سره غوړيدلې وه، له پاسه هر څه بريښيدل، ساتونکي به د تشنابو په سر شپه ورځ ګرځېدل، څوک به يې خوب ته نه پرېښودل څکه دلته خوب او ارام ممنوع وو .

د چت په سر به يوه ساتونکي زياتره په مسلسله توګه يو لوی ځنځير د پنجرې په سر کشولو ، بلاک له اوسپنيزي چادرو جوړ و، نو لاندې به يې بيخي سخت بد اواز کاوه چې د انسان د برداشت څخه وتلې خبره وه، لاندې په دهليز کې به نورو عسکرو اوسپنيز کوتکونه په لاس ول د بنديانو د خونو دروازې به يې په زوره زوره وهلې، له هر لوري به دغه اواز راتلو . بندي خوب نشو کولای !

په ورځ کې به دوه يا درې ځله د عسکرو ضابط يا افسر لاندې راکوزيدی، عسکر به ورسره وو . هر تشناب ته چې به ورننوتل، عسکرو به بندي له لاس او پښو څخه ورته ټينګ کړ، مشر به يې په کيبل باندې داسي واهه چې د هر بندي چېغې به د بلاک له يوه سره تر بله رسيدې، هر يوه به فکر کوو چې ورپسې زما نوبت دی.

دلته نه د روژې خاطر او احترام کېده، نه د اختر، نه د عالم، نه د قران د حافظ، نه د سپين ږيري او نه د مريض او ماشوم.

هر وخت به هر څوک د دغو سزاوو ښکار کېده ( الا ماشاء الله)، که کوم عسکر يا ضابط به ښه انسان و نو د هغه په نوبت کې به ټول بنديان ارام ول .

له هيڅا سره يې له يوی کمپلې زيات څه شی نه پرېښودل، قران کريم به اکثره بنديانو د ډوډې په غوري باندې اينوده.

مونږ د زندان له اول سره يوازې وو، په دغه بلاک کې هم يوازې وو خو د بنديانو غږونه له يو بل سره رسيدل، د څنګ تشناب والا سره مو په ښه توګه ښې رواني خبري کولی شوې او له نورو سره هم کيدی شوې خو اواز به چې لوړ شو نو بيا به خامخا د نوري جزا وړ ګڼل کېدلې.

نورو بنديانو به اکثره لس ورځې تيرولې بيرته به يې خپلو بلاکونو ته انتقالول، کله چې به زموږ څنګ ته نوی بندي راوړل شو، لږ وروسته به مو ورو غږ ورکړ چې : کوم بلاک نه يې راوړی يې، څوک يې ، سياسی که جنايي؟ کوم ولايت ؟ که تاسي له خپلوانو سره ملاقات کړی وي يا د نورو بنديانو په ملاقاتونو حال لرئ نو دباندې څه حالات دي؟ نوې کيسې راته وکړه! داسي او دغسې۔ نوري زياتي پوښتني به مو ترې کولې، موږ به ددنيا له حالاتو نه خبريدو نو له بنديانو به مو پوښتنې کولې، خو د بنديانو معلومات به هم اکثره په اوازو بنا وو، دقيق نه وو، ممکن دوی ته هم خپلوانو د روحيې ورکولو په نيت هغه شايعات ويل چې واقعيت يې نه درلود، په ورځ کې به يې ترې درته فتحه کړه تا به ويل لکه چې ريښتيا دي. يو زنداني شاعر ملګري محمودي صيب يو بيت کې راته ليکلی و .

مکړه د بګرام پوښتنه مه کوه

یو پکې دروغ او بل ویښته ډیر دي

ویښتان هم بیخی زیات تویېدل، کوټې به ټولي ترې ډکي وې؛ ځکه یې د ویښتانو د زیادت یادونه کړې وه.

لنډه دا چې د ځنګ تنشاب ته به ډیر زیات متوجه وم چې څوک نوی کس به راځي، یوه شپه ناوخته یې یـو بنـدي راوور، ضـابط ورسره لګیا وو پوښتنی یې ترې کولې خو په خبرو یې سم پوه نشوم بستره ورسره نـه وه پـه سـړه زمکـه ناسـت و، عسـکرو ورتـه ویـل چـې لوجیستک ته مو زنګ وهلی راوړي یې ، نو پوه شوم چې دا بیخی نوی تازه بندي دی، کیدی شي له امنیت څخه یـې دلتـه راوړی وي ځکه له نوي بندي سره به بستره نه وه . ناوخته یې کمپله ورته راوړه مننه یې ترې وکړه ،څو ځله یې قران کریم ترې وغوښت، دوی ورتـه وویل چې نشته ، سهار مې چې لمونځ وکړ د شپې والا عسکر لاړل د ورځې شفت راغی، د شفت مشر بغلانی و، ماسره یـې ملګرتیـا وه څـو ځله راغی خو خبری یې نه کولې، اخیر یې وویل چې ستا ځنګ نفر امنیت والا رالیږلی دی هسی نه جاسوس وي، زما او ستا خبرو ته بـه غوږ نیسي بیا ورپسي ورغی، پوښتنی یې ترې وکړې چې څوک یې؟ کله بندي شوی یې؟ هغه ورته وویل چې د سالنګ یـم پـرون یـې نیولی یم.

ــ څه جرم دې دی ؟

ــ څلور کاله مخکې مې په وزارت کې امریکایان ووژل زه پولیس وم.

ضابط ورباندی غږ کړ چې هغه عبدالصبور سالنګي خو نه یې پرون یې تلویزون کې ورکولې؟ ده وویـل هـو هغـه یـم . ضـابط نـورو عسکرو ته هم غږ وکړ چې دلته راشئ! ټولو ته یې وویل دا هغه کس دی، نو ټول د تشناب په سر ورتـه کیناسـتل پوښـتنی یـې تـرې پیـل کړې، ټولو ورته ویل چې څنګه دي دا کار وکړ؟

غازي عبدالصبور بیخې غیرتې انسان و، په پوره ډاډ او اطمنان یې ځوابونه ورکول، له غیرت ډکې خبرې یې کولې، وایې د اللـه پـه دین مې غیرت وکړ، خپل وجدان او ضمیر د بې غیرتي اجازه نه راکوله، د الله د رضا په خاطر مې دا کار وکړ ، د الله کلام قران کریم یې سوزولی و. ایا په دې باندي خاموش پاتې شوی وای ؟ نو بیا د ایمان څه مطلب؟

یو عسکر ورته وویل چې ستا قضیه خو ډیره لویه ده، خلاصون دي ډیر سخت دی، کیدی شی اعدام شې، صبور ورتـه وویـل چـې ابراهیم علیه السلام د الله په دین غیرت وکړ، الله په ده باندي غیرت وکړ. داسې غیرت یې پرې وکړ چې دنیا ورته حیرانه ده، بیا یې هغه ایت تلاوت کړ. قال الله تعالي: [قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ (٦٩) سورة الأنبياء ] الله جل جلاله ورته وویل چـې ای اوره زما ددوست لپاره یخ شه او دومره هم مه یخ کیږه چې له یخنی درکی مړ شی .

ټولو عسکرو غوږ ورته اینبی و لکه دوی ټولو ته چې پیغور ورکوي، د امریکایانو د وژلو کیسه یې وکړه, وایې له دې کـار نـه وروسـته لاړم ایران ته، هلته مې مزدوری کوله، څلور کاله بعد پټ راغلم خپل کلی ته بیا جنرال راباندی خبر شو، د جنرال نـوم مـی وانـه اوریـدو خو فکر کوم ایوب سالنګی وو، ډیر ډاډ یې راکړ چې هیڅ څه نشته ته یو ځل راشه زه دې ضامن یم، اخیر مې باور پرې وکـړ، ورغلـم نـو هغه دوکه راسره وکړه بندي یې کړم کابل ته یې رالیږلم نن یې دلته راوړم.

ضابط بنه سړی وو هغه ورته ډیر اطمنان ورکړ، وایې څه خدمت چې وي ماته ووایه! صبور ورته وویل چې قران کریم غواړم، ضـابط یو عسکر ته وویل هغه قران کریم ورته راوړ، یو عسکر زما خواته راتاو شوو، او راته یې وویل: ډیره عجیبه کارنامه یې نده تـرسره کـړی؟ مـا ورته وخندل، ورته ومې ویل چې ته هم داسې تکړه شه، دلته خو امریکایان ډیر راځي یو بل خوا ته یې وکتل بیا یـې د بـې وسي خنـدا وکړه نور یې هیڅ نه وویل لاړو .

لږ وروسته غازي عبدالصبور په ښکلي اواز تلاوت پیل کړ، په تلاوت اخته و چې نور کسان ورپسي راغلل او له کـوټې یـې وایسـت او درک یې معلوم نشو ، له ضابط مې وپوښتل چې چېرې لاړو ؟ وا یې هغه خارجې شو ته یې یوړو، هلته امریکایان تحقیق ترې کوي. ډیـر

زړه مې پرې وخوړېده څکه هغه ځای ما لیدلی و، اته میاشتې مې پکې تیرې کړې وې، هغه بیخی تنګ تنګ یو نفری تشنابونه وو، زما وس دا و چې دعاوې مې ورپسې کولې.

له ځان سره مې فکر کاوه چې ډېر غیرتي او عقیدوي انسان دی، د خدای په دین یې غیرت کړی دی، د خدای تعالی وعده حقه ده ضرور به الله تعالی بندي لاري ورته خلاصوي.

هغه بله ورځ مې په رسنیو کې ولید، وایې چې غازي عبدالصبور د امارت اسلامي د توافقنامی په اساس له زندانه خوشي شوی دی، نو همدا د خدای غیرت او ننګ دی چې په خپل غیرتي بنده یې وکړ او د غیرتیانو ننګیالیو په لاس یې له زندانه ازاد کړ .

د غیرت خاوندانو ته په دې کې لوی ډاډ او درس پروت دی، دا د تاریخ کومه پخوانی کیسه نه ده ، چې ثبوت ته یې شواهد اوکتابونه وکتل شي، دا د نني ورځې ژوندی مثال دی چې الله تعالی موږ تاسي ته را ښکاره کړ او هغه قهرمان په جګو سترګو له زندانه راووت . صبور غازي به په تاریخ کې د یو اتل او غازي په نوم تل ترتله یادیږي. ان شاء الله

پای......!



# بوره یا زهر سفید!

اجمل اصولی



خاصـــیت: بوره در جریان پروســـس با مواد کیمیاوی ترکیب میگردد. بوره حاوی دو مالیکول (۵۰٪ گلوکوز و ۵۰٪ فرکتوز) می باشد. گلوکوز آن جذب بدن گردیده اما فرکتوز آنرا جگر شناسائی نتوانسته به شحم (چربی) مبدل کرده و به اطراف شکم جمع مینماید.

بوره مادر امراض:

استفاده از بوره باعث امراضی مانند: شـکر، نفس تنگی، تخریب دندانها، قلبی، سـرطان، پیری زودرس، افزایش کلسترول خون، افسردگی، ضعف سیستم یادگیری و حافظه و سنگ گرده میگردد.

انرژی موقتی:

بوره باعث انرژی و خوشی موقتی در وجود گردیده و بعد از گذشت چند ساعت منجر به ضعف، سســتی، گنگســیت و کسالت میشود.؛

ضعف سیستم دفاعی بدن:

بوره سیســتم دفاعی وجود را ضعیف ساخته توازن منرالها، ویتامینها و هورمونها را در بدن از بین میبرد. اکثراً دلیل ریزشها، ضعف در قوه مدافع بدن است.

برابر هیروئین معتاد گر:

با استفاده از هیروئین به شکل یک نکته هورمون خوشی در مغز ترشح میگردد. اما زمانیکه بوره استفاده میشـــود، هورمونهای خوشی مغز چراغان میگردد!

بدیل بوره

به عوض بوره و شرینی های که در ترکیب خویش بوره دارند میتوان از شرینی های طبیعی مانند خرما، عســـــل، گر، نیشکر، انگور، کشمش و سایر شرینیهای غیر پروسس شده استفاده نمود.

لطفا خود را از غذا های غیر طبیعی نجات دهید چون اینها خطرناکتر از مواد مخدر و کرونای امروز است.

# تاریخ جوړوونکي اتلان به څنګه روزې؟!

ژباړه او زیاتونه: م عبدالله طیب

آیا انسان د مور له خېټې زړور او اتل وي او که هغه کې دغه اتلولي د وخت او زمانې له حالاتو او ظروفو سره سمه راځي، یا د تعلیم په مرحله او د ژوند په مدرسه کې دا فنون زده کوي؟! داسې پوښتنې د ډېرو خلکو پلرونو ، میندو او مربینو په ذهن کې تېرېږي لکه څنګه چې پخوا یې د ډېرو فلاسفه و په خبرو او د مفکرینو په لیکنو کې ځای نیولی و، خو له ډېرې زمانې وروسته معلومه شوه چې بهادري، نبوغ او اتلولي په انسان کې فطري هم وي او هم په خواري او هڅو سره انسان ورته رسېدلی شي.

ډېر کرته یو بچی ځېرکتیا، زړورتیا او د قیادت ډېر صفات ولري، غلطه لاره تعقیب کړي ، چې د خواهشاتو قرباني شي او خپل ځان سره ظلم وکړي، بیا یې عاقبت ډېر خراب شي، مګر کله یو ماشوم ډېر کمزوری ، ډېر بې زړه او بې خیره وي، خو د سختو ظروفو او چیلنجونو سره مخ شي، داسې کارنامې وکړي چې چا په تاریخ کې نه وي کړي او په هغې سره د خلکو ترمنځ د اتلولۍ او عظمت سمبول وګرځي.

اتل څنګه جوړیدلای شي؟ د اولاد د ژوند مسیر بدلولو کې د مور- پلار ډېر ستر کردار وي، او دا بهیر د بچي د اتل او قیادي شخصیت جوړونې لپاره د سړي لخوا د ښې ښځې په انتخاب سره پیلیږي، هغه چې خپل بچي ته د شودو رودلو ترڅنګ اخلاق او سلوک هم ورښیي، او همدا راز په ښځې او د هغې په سرپرست باندې د غوره خاوند ټاکنه ضروري ده چې هغه خپل بچیو ته فطري او غوره طبعي صفات ورکړي.

له هغې وروسته پړلپسې د ښه تعلیم او عالي تربیې زمینه برابره شي چې د هغې په وجه انسان کې تجربه ، مهارت ، ځواکمنتیا هم ملګري وي، او هم ورکې د قیادت (رهبري) جوړونې مهم صفات لکه: شجاعت، په ځان باور، تواضع، رښتینولي، ځیرکي، امانتداري، روښانفکري ، لوړ همت او چُستیا پکې راشي، یا نوري داسې ځانګړنې پکې راڅرګندې شي چې په خپل ځان یې باور او نورو ته د نفعې او ګټې سبب وګرځي.

دا ټول صفات ښه دي مګر په نفس کې او ژوند کې تر هغو نه شي راتلای چې صبر او امید ورسره ملګري نه وي او نا امیده او ناکامۍ ته ژر تسلیم شي، نو نوموړي ته یې باید د ننګونو او ستونزو سره د مقابلې قدرت او تاب موجود وي کوم چې پدې دنیاکې ورسره د هر انسان مخ کېدل حتمي دي، ، ماسېوا لدې چې لوړ منصب لري او که ټیټ ؟ مګر هغه ورسره مخ کېدونکی دی.

بلکې ویلای شو چې کامیابي هله راځي چې کله سړی له چیلنجونو او ستونزو سره لاس ګرېوان شي، کوم چې انسان لپاره پرځان د باور پخېدلو لومړۍ پوړۍ ګڼل کیږي نو دغسې د ماشوم لپاره هم د محیط مشکلات غوره ګټور پدې وي چې په ځان کې اتلان او مهمې پرګنې وزېږوي او داسې لاربښوونکی پیدا شي چې د ژوند اصلي مقصد ورته معلوم او شته ټول مشکلاتو درک وکړای شي.

دلته یوې خبرې ته اشاره پکار ده چې په سړي کې دا صفات د یوې ورځې او یوې هفتې خبره نه ده بلکې دا به د ژوند په مختلفو مراحلو کې ډېر په تدریج سره قدم په قدم پرمختګ کوي، شاید

شپیتو کلو ته سړي ورسي، خو لاپې هم ددغو صفاتو کمال درجې ته نه وي رسیدلی، البته مهمه داده چې باید د خپل نفس اصلاح او ارتقاء لپاره د ژوند په هره لحظه کې خپلې هلې ځلې جاري وساتل شي.

راځو ، دلته هغو اتلانو ته ور ګرځو چې هغوی څنګه تاریخي اتلان وګرځېدل ، د هغوی لپاره د روزنې کوم محیط ، کومه مدرسه او کومه څواک و چې هغوی یې اتلان جوړ کړل بیا هغوی تول تاریخ بدل کړ، ته به مختلفې بیلګې وګورې چې هغوی کې د اتلولي صفات او عادات د ربښتیني ایمانداری او علم نافع له وجې راغلي وو یا هغوی پداسې تولنه کې زېږېدلي و چې له هغې یې ثبات او مقاومت درس زده کړی و، او یا هم د هغوی تکره والی او نبوغ د علماءو، مربینو ، څواکمنو سرتېرو، مشرانو او مصلحینو د خواریو نتیجه وه چې چې تاریخي اتلان ترې جوړ شول .

**د مور په مدرسه کې روزنه ... له هند بن عتبه څخه تر ابن حنبل پورې...**

پخوا به خلکو ویل چې له هرې سترې پیښې شاته د ښځې لاس وي، دا خبره ډېر وخت بعد خلکو په واقعیت کې ولیده ، که ښځه خپل مسؤلیت سم اداء کړي هغه چې لدې څخه غوښتل کیږي، نو د تاریخي رجالو او اتلانو په روزنه کې تردې بل غوره روزونکې نشته. هر ستر شخصیت چې د مور له رحِمه پیدا وي خامخا دهغه په شخصیت کې اثر لري، مګر کله چې هغه له داسې مور سره تړاو لري، چې زړه ته یې سکون ورکوي او له هغه سره پدې لار کې ملګرې وي.

یوه نمونه هند بنت عتبه د معاویة رضي الله عنه مور ده چې کله خپل زوی ته د لوړ همت روزنه ورکوله، نو هغې څه تېوکې نه کولې، یو عالم له صالح بن کیسان څخه روایت کوي چې د عربو کوم مخور سړي د معاویة مور لیدله چې هغه بچي ته ښوونه کوي، نو هغه وویل : زه چې تا وینم لکه ته چې غواړې له خپل زوی سردار جوړ کړې ، هندې په ځواب کې وویل: دده دې مور بوره شي چې دی د خپل قوم مشري ونه کړي.

هلته یوه بله مور لیلی بنت عاصم نومیږي د امیر المؤمنین عمر فاروق رضي الله عنه لمسی ده، نوموړې د ستر خلیفه عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه مور وه کومې چې د خپل زوی په تقوی او علم سره د عمر په تربیه کې ستر رول درلود او ددې په اړه ډېر زیات صفات بیانیږي چې ډېره پرهیزګاره او نیکه ښځه وه، مؤرخینو هغه په (الأمهات الخالدات) په هغو عظیمو مورانو کې چې ستر اتلان یې زېږولي او تربیه کړي، راوستې .

دغه راز فاطمه د امام شافعي رحمه الله مور ډېره یادیږي چې هغه یې یتیم را لوی کړ، دده د پیدا ئښت لا دوه کاله نه و پوره چې پلار یې وفات شو او د مور په کفالت کې پاته شو. هغه مور چې د بچي تعلیم او تربیه یې په ډېر همت جاري وساتلې، هغې له ځان سره له غزې څخه مکې مکرمې ته راوست، هلته یې پرې د اوه کالو په عمر کې د قرآن کریم حفظ وکړ، له هغې وروسته یې د کوچیانو یوې درې ته ولیږه چې فصیحه عربي ژبه زده کړي، بیا یې وربانـدې شهسواري او رمایه زده کړل، هغه به سل غشي داسې ویشتل چې یو به هم ورڅخه نه خطا کېده، څه وخت بعد هوښیارې مور د هغه علم ته مخه وګرځوله، هغه به یې له ځان سره هر ښار ته بېوه او علماءو ته به یې مخکې کاوه، شافعي رحمه الله هغې څخه د هغې هوښیاري، شرافت، ادب او حسن فهم زده کړ، تردې چې یو وخت له هغه څخه امام جوړ شو. لکه څنګه چې امام احمد بن حنبل رحمه الله دهغه تعریف کوي: "کالشمس في الدنیا وکالعافیة في البدن" دنیا کې هغه لکه لمر او بدن کې لکه تندرستي داسې وه، د علماءو او اتلانو په روزنه کې چې د مور کوم رول دی، په بیان کې یې دا بس ده چې د احمد بن تیمیه رحمه الله ته د هغه د مور لیږلی خط ولوستل شي، کله چې ابن تیمیه په یوه لرې ښار کې واړول او هغې ته یې په لیکلي خط کې خپل عذر وړاندې کړ: چې مورې! خلکو ته دین رسول راته ډېر مهم دي، خو هغې ورته ولیکل: قسم په الله چې ما د همدې لپاره ته تربیه کړی وې، داسلام او مسلمانانو خدمت ته مې وقف کړی یې، ما تاته د دین سمه لاره وښودله، اې زما بچیه ! ته دا ګومان مه کوه چې زه به ستا د اسلام او مسلمانانو په خدمت کې ستا لرې والی په نږدې والی محبوب وګڼم، بلکې خومره چې تا دین او مسلمانانو ته خدمت کړی وي، په هغه اندازه به زما لپاره خوښې وي، اې زما بچیه ! زه به هیڅکله د قیامت په ورځ له تا څخه ددې پوښتنه ونه کړم چې ته له ماڅخه لرې وې، ځکه زه پوهیږم چې ته چېرې او په څه لګیا وې؟! مګر اې احمده ! قسم دی زه به تا څخه خامخا ددې پوښتنه او محاسبه کوم که

چېرته تا د الله د دين په خدمت کې بې اعتنايي کړې وي يا دې د خپلو هغومسلمانانو ورونو چې هغه ددين تابعداره وي، په خدمت کې تقصير کړی وي.

**محمد الفاتح ... دخپل پلار او شيخ په ځانګړې روزنه کې!**

ډېری خلک پوښتنه کوي چې محمد الفاتح (۸۳۵هـ ق /۸۸۷هـ ق) څنګه وکولای شول چې په کوچني عمر کې قسطنطنيه (اوسنی استانبول) ستر ښار فتحه کړي، يو داسې ښار چې ډېر ستر خلک او اميران پکې بې وسه شوي و، د هغې له نيولو ډېر ستر ستر اميرانو او پاچايانو خپل ارمانونه ګور ته يوړل، خو که چېرته موږ د محمد الفاتح لږ شاته څېړنه وکړو، ته به يو ستر سرې پيدا کړې چې هغه د محمد مربي او استاد و، هغه سره يې له ماشومتوبه نيولې تر بلوغ او عقل پوره کېدو پورې په هغه کې د قسطنطنيې د فتحې فکر زيږولی و، هغه "شيخ محمد بن حمزة الروحي" نومېده او په آق "شمس الدين" باندې مشهور و، نوموړي د محمد الفاتح شخصيت جوړونه کې ستر اثر درلود پداسې حال کې چې هغه به ورسره ملګری و او هغه ته به يې هره ورځ لارښوونه کوله، دهغه تربيه او تعليم يې په دوه بنسټونو ولاړ و: لومړی د جهاد غوره والی، دويم: هغه ته دا شعور ورکول چې ته د نبوي حديث مصداق يې او ته همغه امير يې چې پيغمبر صلى الله عليه وسلم ستا په اړه فرمايي: لتفتحنّ القسطنطنية فلنعم الأمير أميرها ولنعم الجيش ذلک الجيش. (تاسې به ضرور قسطنطنيه فتحه کوئ، نو دهغې مشر به غوره مشر وي او دا لښکر به بهترين لښکر وي).

ددې روزنې سربېره يې ورته استاد د نورو علومو، فلکياتو، تاريخ ، د جګړې استراتيجيکو قواعدو زده کړې ډېر اصرار کاوه، چې له تعليم او تربيې پرته کاميابي نشته ، دغو خبرو د محمد شخصيت لکه اوسپنه داسې مضبوط وګرځاوه ، سيوا له دې چې هغه د جګړې او سياست له بخش سره مينه وه، کله چې هغه رالوی شو په هغه کې اسلامي امت لپاره لوړ اميدونه و، هغه سره احساس او شعور، عالي همت، اسلامي تمدن سره مينه ملګري وه او هم تکړه اديب او شاعر وګرځېد.

له بله اړخه د محمد الفاتح پلار سلطان مراد چې د خلافت عثماني اووم پاچا و، هڅې او کوششونه هم بې څه نه و، هغه دخپل زوی لپاره ګڼ شمېر استادان، روزونکي نيولي و، چې هغه ته د قيادت (رهبري) وصول ور وښيي، د هغه تعليمي سويې لوړېدو سره سره د قيادت او د مسئوليتونو اداء کولو درک وکړاي شي، هغه د قرآن کريم حفظ وکړ، حديث يې ولوستل، فقه يې زده کړه او نور علوم لکه رياضيات، فلکيات او د جګړې فنون ولوستل، دې سره سره يې عربي، فارسي، لاتيني او يوناني زده کړې او هم يې له خپل پلار سلطان مراد سره وخت په وخت جګړو کې برخه اخيسته، سره لدې چې محمد په قصر کې رالوی شوی و، له لوبو سره يې مينه وه، مګر سلطان مراد هغه ته احمد بن اسماعيل الکوراني استاد وټاکه، دا لارښوونه يې ورته وکړه چې که هغه انکار کاوه وهه يې، نوموړي د خپل زوی بې ځايه وخت تېرولو او لوبو ډېر خفه کېده، پدې يې ډېر ټينګار درلود چې له ماشومتوبه قائد جوړ شي، هغه په ۱۲ کلنۍ کې وړتيا او کافي ځېرکتيا او بيداري پيدا کړه، څکه خو يې د "مانسيا" ولايت لپاره والي وټاکه ، کله چې هغه د ۱۴ کالو شو هغه دومره استعداد درلود چې د هغه پلار سلطان مراد هغه ته د واک سپارلو لپاره له تخته کوز شو.

محمد الفاتح د اسلامي تمدن او ادب په برخه کې ډېر مشهور شو، هغه خپله شاعر و، او د شاعرۍ ديوان يې درلود ، هر وخت به په مطالعه بوخت و، شعر او ادب به يې لوست، علماء او شاعرانو سره يې به يې ناسته پاسته ډېره وه، په دوی کې يې ځينې د وزارتونو تر منصبدارۍ پورې وګمارل.

**يوسف بن تاشفين د عبدالله بن الياسين په محاذ کې روزنه**

په سرسرکي نظر سره که د يوسف بن تاشفين (۴۰۰هـ ق / ۵۰۰هـ ق) مرابطينو دولت ته وګرځو، کوم چې د مغرب عربي سيمې او ښارونه سره متحد کړل او تر څلورو پېړيو پورې يې اندلس له سقوطه وژغوره، نو ته به وګورې چې کومې سترې پېښې او کاميابۍ چې د نوموړي په برخه وې او د تاريخ لوری يې بدل کړ، په هغې کې د هغه په شاوخوا کې محيط او چاپېريال، ايماني تربيې او تعليمي هڅو ستر کردار درلود.

شيخ عبدالله بن ياسين د مرابطينو ډلې مؤسس و، او د نيجر سيند په غاړه يې جهادي جبهه فعاله کړې وه، دهغه په هڅو او دعوت يوسف بن تاشفين جلب شو، هغه له سنګر او جهاد سره په ډېره مينه او روحيه رالوی شو. تردې چې يو وخت د هغه له نږدې

ملګرو څخه وګرځېد، د ډېرې اتلولۍ او نبوغ له وجې داسې وخت راغی چې د دوی جبهه د یوسف په قیادت کې یو دولت وګرځېده ، چې "دولة المرابطین" ورته ویل کېده.

ابن یاسین خپل ټول ژوند د علم ، دعوت او حقیقي دین ته د خلکو جلبولو او د شرعیت تطبیق لپاره وقف کړی و، ګڼې جبهې یې پرانیستلې وې، لومړۍ جبهه یې په افریقیا کې چې د سنغال سیند ته نژدې جوړه کړې وه او په تکړه شاګردانو کې یې یو اتل یوسف بن تاشفین و.

ددې جبهو جوړولو هدف دا و چې شیخ به خپلو شاګردانو باندې د معین وخت لپاره له ښار څخه بنه لرې د درس ورکولو، د نفس تزکیې او په جهادي اعداد او تدریب باندې وخت تېراوه، ترڅو د دوی ارادې کلکې او متې مضبوطې شي .

د وخت په تېرېدلو ابن یاسین داسې پرګنې وروزلې چې د مغرب سیمې، منځنۍ افریقا او د اروپا جنوب لویدیځ هیوادونو تاریخ یې بدل کړ، همغه و چې د مرابطینو دولت له لارې یې ټول مغرب، د الجزائر لویه برخه ، دغربي افریقا ګڼ ښارونه او د اندلس اکثریت د یوسف بن تاشفین په دور کې په اسلامي خطه کې شامل کړای شول.

**صلاح الدین ایوبي... د نور الدین محمود په مدرسه کې لوړ همت زده کړ!**

د صلاح الدین ایوبي (۵۳۲هـ ق ۵۵۹هـ ق) دغه وینا چې " زه به خاندم او اقصی به اسیر وي" د تعجب خبره نه ده، هغه د یو داسې عادل پادشاه نور الدین زنکي په لاس روزل شوی و، چې هر وخت به یې ویل: "زه له الله تعالی څخه حیاکوم چې ما په موسکا وویني او مسلمانان د پرنګیانو لخوا محاصره وي".

دا کلمات د صلاح الدین ایوبي تګلاره او همت په ډاګه کوي کوم چې هغه ته له خپل مربي او استاد څخه په مېراث پاتې و، له دې معلومېږي چې شاګرد د خپل استاد په ورو او غټو کې د هغه له اخلاقو او عمل دواړو اغېز اخلي ځکه خو د صلاح الدین ایوبي په خبرو کې هم له عادل پاچا نور الدین محمود څخه اثر موجود وو.

نور الدین د علماو په نزد له عمر بن عبدالعزیز رحمه الله وروسته تر ټولو غوره شخصیت ګڼل کېږي پداسې حال کې چې هغه داسې مېړنیو اتلانو او سالارانو څخه و چې الله تعالی د خپل دین نصرت لپاره وکاراوه، الله تعالی د صلیبیانو سره د جګړې محاذ لپاره د قومندانانو د روزلو او د اسلامي امت د پرتم د راګرځولو لپاره مسخر کړ، هغه امت چې دغه زمانه کې په څو ورو او کمزورو سلطنتونو او خپلسریو حکومتونو ویشل شوی و.

نوموړي له ماشومتوبه صلاح الدین د جهاد په روحیه تربیه کړ، هغه ورته د پلار او معلم په څېر د جګړې فنون ور ښوول او د جهاد مینه یې پکې راژوندي کوله ، بیا یې د پولیسو یوې ډلې قومندان وټاکه ، یو وخت یې له خپل تره "اسد الدین شیرکوه" سره یې ملګری کړ او مصر ته یې ولیږه ، هلته صلاح الدین د وزارت تر دندې ورسېد، هغه د فاطمینو دولت وځاپه او ستره کارنامې یې درلودې، په همدې وخت کې مصر- یوځل بیا سني حالت ته وګرځېد.

رښتیا چې نور الدین محمود په خلکو ډېر کار وکړ، هغوی به یې جهاد في سبیل الله ته تیارول او هغوی یې داسې محیط کې سمې لارې ته سوق کړل چې ددښمن خطرونه زښت ډېر و، اسلامي مقدسات د دښمن په تسلط کې و، هر وخت یې پر مسلمانانو د یرغلونو وېره وه.

نور الدین محمود رحمه الله د ځوانانو او کمکیو لپاره د قرآن کریم او نبوي احادیثو زده کړې خاصه توجه وه، بالخصوص یې هغه وخت توجه لا ډېره وه چې په شام کې د سیف الدولة حمداني حاکمیت لاندې سیمو کې د شیعه ګانو د نفوذ پراخېدلو او هغه یې په مخنیوي خپلې هلې جاري وساتلې.

نور الدین هرځای کې په مدرسو جوړولو شروع وکړه، چې په هغه کې د حنفي او شافعي مذاهبو تدریس کېده او ورسره یې د مالکـه و او حنابلـه و علماءوباندې هم اهتمام درلود، د هغه د کوښښونو په نتیجه کې د حلب ښار پدغه وخت کې د تعلیم ، ثقافت او اسلامي تمدن اساسي مرکز باندې بدل شو، تردې چې مؤرخ عالم عز الدین شداد چې کله د نور الدین په وخت کې ددې ښار مدرسې وشمېرلې نو ۵۴ مدرسو ته یې شمېر رسېده. دغه راز نور الدین به د کمکیانو مدرسو ته ډېره توجه کوله د یتیمانو پالنه او تربیه یې مفت کوله، شاګردانو او استادانو ته یې ماهانه کافي اندازه پیسې ورکولې ، ورسره نور الدین زنکي ځانګړ و تعلیمي مؤسساتو ته اوقاف ګمارلي و، چې د مدرسې طالبان او استادان یې د علم

زده کړې ته فارغ وي، تردې چې ابن الأثير له يوچا څخه روايت کوي چې د نور الدين اوقافو له بوديجې يـواځې پـه ٦٠٨هــ ق / ١٢١١م کال کې ٩ زره دينـاره د مياشـتې مصـارف کـړي، همـدا وجه وه چې شام د نوموړي په دور کې د علماو او فقهـاو لپـاره د قبلې حيثيت درلود.

پدې ډول نور الدين محمود زنکي د ماشومانو روزنې لپـاره داسې محيط برابر کړی و، چـې د صـلاح الـدين ايـوبي غونـدې اتلان يې وزېږول ، نوموړي همدا راز پـه هيـواد کـې هـره اداره او سياسي او فکري قيادتونه په اسلامي صبغه ورنګـول، هغـه خپلـه شورا درلوده، څومره فيصلې به چې کېدلې، هغه به يې يوازې نـه کولې، په شخصي مصالحو يـې عامـه مصـالح ورانـدې کـول او مشري يې هم د وروروليـ، تعاون، زهد او عفت پربنسـټونو ولاړه وه، د جهاد لپاره به يې خپـل مـال هـم مصــرفوه، د خلکـو عامـه مصالحو ته پام، سلامتيا، عادلانه برخورد او احترام هغـه ايمـاني، اخلاقــي او علمــي صــفات وو چــې دهغــه پــه مجاهــدينو ، مرستيالانو او د پوځ قومندانانو کـې يـې بـې سـاری اثـر درلـود. تردې چې ځينې يې دده سره لکه دده وزير محمد بن عبدالله بـن القاسم او لکه صلاح الدين په علم، اخلاقو او تقوی کې يو برابـر روزل شوي و.

اما صلاح الدين ډېر زړور او تکړه سالار و، هغه سره به يـې ډېره مينه کوله او ځانته يې ډېر نژدې کړی و، تردې چې هغـه يـې په دمشق کې دپوليسو قومندانۍ مشر وټاکـه، ځکـه چـې هغـه د خپل امير نور الدين زنکي په منلو او اطاعت کې نوميالی عسـکر و.

خلاصه دا چـې تـه کلـه " دغسـې د صـلاح الـدين پرګنـۍ راڅرګندې شوې او دغسې قدس راوګرځېد" کتاب مطالعه کـړې نو ته به دا حتمي پيدا کړې چې د صلاح الدين ايوبي ظهور کومه خارق العادة پېښه نـه وه چـې دهغـې بيـا پېښېـدل سـتونزمن وي، بلکې د صلاح الدين راڅرګندېدل په ټوله کې د امت د سلو کـالو مسلسلو هڅو او خواريو ، د اصلاح او نوښـت کوششـونو ثمـره وه ، هو! که چېرته همداسې ماحول او ظروف برابر شي نـو د يـو بل صلاح الدين راښکاره کېدل او د اقصی بيا راګرځېدل کومه نـا اشنا نه ده.

## برخي از حقوقِ مسلمان بر مسلمان

- آبرويش را حفظ کند
- از لغزش او درگذرد
- با او هم‌دردی و مهرورزی نمايد
- در سختی‌ها ياری‌اش دهد
- او را از رنج و بُحران برهاند
- عذرخواهی‌اش را بپذيرد
- در غيابش از آبروی وی دفاع کند
- پيوسته نصيحت‌گر و خيرخواهش باشد
- صميميت و دوستی‌اش را حفظ نمايد
- عهد و پيمانش را پاس بدارد
- دعوتش را بپذيرد
- هديه‌اش را قبول کند
- پيوند و ارتباط دوستانه‌اش را به‌نيکی پاداش دهد
- قدرشناس الطاف او باشد
- به‌نيکی و به‌تمام و کمال ياورش باشد
- نيازش را برآورده سازد
- برای درخواست مشروعش وساطت کند
- و چون عطسه زد، به او يرحمک الله بگويد
- گمشده‌اش را به او برگرداند
- با او دوستی و همکاری نمايد و نه دشمنی
- او را در برابر ظالم ياری دهد
- و او را از ستم کردن به ديگران باز دارد
- او را تحويل دشمن ندهد
- تنهايش نگذارد
- برای او همان چيزی را دوست بدارد که بـرای خـود دوست مـی دارد
- و آنچه را بر خود نمی‌پسندد، بر او نيز نپسندد

از ابوهريره رضی الله عنه روايت است که پيامبر ﷺ فرمودند:
«مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللَّهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ» [متفق عليه]

«هرکس مصيبتی از مصائب دنيـا را از انسـان مـؤمنی برطـرف نمايد، الله تعالی در پاداش آن، مصيبتی از مصائب قيامـت را از او برطرف خواهد کرد

# دهم حوت؛ روز ماندگار در تاریخ آزادگان

بخش دوم

حبیبی سمنگانی

سپس هرگاه پیمان پایان اشغال از سوی محترم ملا برادر آخند و زلمی خلیلزاد، نماینده خاص امریکا برای صلح افغانستان امضا می شد، باز هم نعره های ایمان پرور «الله اکبر» نیروی ایمانی فرزندان دین و میهن را به نمایش می گذاشت.

ناکامی امریکا در افغانستان، از نگاه آگاهان نظامی معجزه باور نکردنی قرن به شمار می رفت، بسیاری ها هنوز هم شگفت زده اند که شاید این صحنه را در عالم رویا تماشا می کنند. اما با امضای توافقنامه، مهر تائید بر این معجزه زده شد. این نوید جانفزای فرارسیدن فصل شکوفایی افغان ها و افغانستان بود.

پس از برگشت از قطر، روزی به ملاقات یکی از مسئولان بلندرتبه امارت اسلامی رفتم، شخصی در جریان صحبت پرسید، آیا شما هم دران روز در تالار وجود داشتید، گفتم ؛ بلی، گفت : «چطور حرکت قلب تان از خوشحالی بسیار ایستاده نشد، در حالیکه ما درین جا در اثنای زمزمه نعره تکبیر، نتوانستیم احساسات خود را کنترول کنیم و از خوشی بسیار اشک می ریختیم و ناله می کردیم».

این بار نخست نبود که افغان ها با جهد و پیکار خستگی ناپذیر شان، رقیب قدرتمندی را از پا درآورده و از کرامت و آزادگی شان دفاع کرده باشند. پیشتر ازین، امپراتوری های انگلیس و شوروی با روزگار تلخ تری درین دیار دچار شده بودند. اما این پیروزی های پیهم، بر وقار و سنگینی افغان ها افزوده است. از همینست که رفتار و اطوار طالبان دران روز امضای پیمان، به شکل عادی و همیشگی بود. ایشان نه غوغای داشتند و نه هم هیاهوی بی جا.

در جریان مبارزه بیش از هجده ساله، بار اول بود که رسانه ها حدود صد تن وابستگان امارت اسلامی را در یک تالار یکجا دیدند، بیشتر آنان تا هنوز به جز تیم مذاکراتی و سیاسی، دیگر طالبان را تنها از چشم رسانه های زرخرید خود دیده بودند، آن ها طالبان را از آنچنانی که برای شان معرفی شده بودند، کاملا دگرگون یافتند. بر علاوه از لباس زیبای ملی؛ نظم ستودنی طالبان در اثنای آمد و رفت، نشست و برخاست، به خصوص فرق مراتب میان خوردان و بزرگان امارت اسلامی، برای رسانه های جهان تعجباور بود. آن ها در گذارشات خود، ازین نحوه برخورد شایسته طالبان یاد هم کردند.

پس از پایان مراسم امضا، تمامی نمایندگان تقریبا سی (۳۰) کشوری که در جلسه توافقنامه حضور یافته بودند، خواهان ملاقات های جداگانه با معاون سیاسی و رئیس دفتر سیاسی امارت اسلامی محترم ملا برادر آخند و تیم او بودند، تا پیام های تهنیت و مبارکبادی شان را مستقیماً اهدا کنند و از نقش سازنده شان در مورد آینده افغانستان، اطمینان بدهند. محترم ملا برادر آخند و رفقای او از همان شب پیمان، به دید و بازدید با هیئت های کشورها آغاز نمودند.

دیر زمانی نگذشته است که بسیاری کشورهای جهان، شعار «طالبان در هیچ نقطه جهان جایی ندارند» را با یکصدا با جورج بوش، رئیس جمهور پیشین امریکا، سر می دادند، اما حالا شاید چرخ فلک دگرگون شده و روزگار سازگار گردیده است. رفقای دفتر سیاسی می گفتند حد اقل پنج کشور به شمول دو دولت اروپایی برای میزبانی گفتگوهای بین الافغانی با هم رقابت دارند و هر یکی شان خواستار شرف میزبانی اند. ستانکزی صاحب از روی خوشطبعی می گفت : در گذشته، بسیاری ها روادار زنده بودن ما نبودند، اما حالا که آنان از ما دعوت می کنند، ما به یکی شان می گوییم جای شما بسیار سرد است و به دیگری شان می گوییم جای شما

بسیار گرم است. فرموده پروردگار عالمیان است : وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ.

شب بعدی پیمان - یکشنبه، یازدهم حوت - مهمانان امارت اسلامی- به جز استاد عبدالرحیم ثاقب صاحب که با محترم انس حقانی صاحب به جای دیگری رفته بود - در دفتر سیاسی امارت اسلامی گردهم آمده بودند. پس از غذای شب، محترم شیر محمد عباس ستانکزی، معاون دفتر سیاسی امارت اسلامی به خواست محترم ملا برادر آخند، فشرده ماجرای چند ساله سیاسی - از ایجاد دفتر قطر تا امضای پیمان - را بیان نمود و اشکال و شبهات مختلفی را که در اذهان مهمانان جا داشت، رفع نمود. سپس نکات مختلف متن توافقنامه هم زیر بحث آمد، پرسش ها از سوی تیم مذاکراتی جواب گفته شد و در مورد ضمایم توافقنامه نیز با جزئیات وضاحت داده شد.

تیم مذاکراتی امارت اسلامی با درک اینکه هنوز مراحل دشواری را در صحنه عمل پیش رو دارند، مطمئن بودند که ان شاء الله، تمام چالش ها از سر راه استقلال کشور و حاکمیت نظام واقعی اسلامی در سراسر افغانستان برچیده می شود. ایشان اطمینان داشتند که با تمسک بر رهنمودهای والای اسلام، توانایی این را دارند که با موقف معقول و منطقی شان، قناعت تمام جهت های داخلی و حتی سازمان های جهانی را فراهم کنند.

بصیرت سیاسی نمایندگان امارت اسلامی، که با تجارب عملی چند سال اخیر، بیشتر صیقل شده است، برای سائر مهمانان، که شامل بعضی مسئولان عمومی کمیسیون های مختلف امارت اسلامی نیز بودند، آرامش بخش بود. آن ها برای همدیگر پذیری و نظام همه شمول اسلامی، نظرات واقع بینانه، عمل پذیر و ارزشمندی داشتند، که امیدواری ها را برای افغانستان آزاد، آرام و اسلامی فزون تر می سازد.

ادامه دارد.......

## د غني او عبدالله تر جوړجاړي

م مبصر

موږ به، چې د سولې پروړاندې د انعطاف پذیرۍ او ګُذشت وویل خیاط وړور به رابرګ شو؛ چې څۀ کوې اوس دلته د پنجاب ارمان راته غړوې؟ په جمهوریت معامله ؤکړو؟ لۀ اساسي قانون ورتېر شو؟ اتلس کلنې لاسته راوړنې قُربان کړو؟ نه!!! هیڅکله نه!!! که طالب سوله غواړي را دِ شي جمهوریت دِ قبول کړي، اساسي قانون دِ وُمني او د ډیموکراسۍ تر چتر لاندې دِ په همدې شته حکومت ؤرګډ شي

موږ به ؤیل؛ چې صاحبه د جمهوریت لپاره ستا د بابا چیغې دروغ دی، هغه خپله پرسولې ولسواکي ورته ذره ارزښت م نلري، دا د جمهوریت مدعي د واک لېوني دی، که واک ته یې زیان رسیږي نو لکه د تېر ځل به بیا م سهامي شرکت /مشارکتي اچار رامنځته کړي، خو تا به تل دا "بابا دِ زرکلن شي" بُغارې وهلې، اوس دا ده، ستاسو بابا د دؤیم ځل لپاره م جمهوریت په شرمونو وشرماو، انتخابات یې په نړیواله کچه رېشخند کړل.

یاالله ته خودغه دجنرال مبین خبره سګ شوی بابا خودې نور زر ترزره لدې غیرتمنې خاورې څخه ترې تم اوزیر و زبر کړي ـ امین او بیا امین



# د دوحې تړون

## د شیر محمد عباس ستانکزي له لیدلوري !

لیکوال: عطاءالله مبارز

د ملا شیرمحمد عباس ستانکزي له نوم سره به هر لوستوال اشنا وي، په ځانګړي ډول له هغه وروسته، چې نوموړی د مسکو فرمټ غونډه کې تور پټکی او شمله په سر د فاتح په بڼه راڅرګند شو او په ډېره جراره او ډاډمنه لهجه یې د اسلامي امارت پالیسي نړیوالو ته ورسوله. ښاغلی ستانکزي صاحب، له امریکایانو سره له افغانستانه د بهرنیو ځواکونو د وتلو په موضوع یوولس پړاوه خبرو کې د اسلامي امارت د مذاکراتي ټیم مشر ـ او له ملا عبدالغني برادر وړاندې یې قطر کې د اسلامي امارت د سیاسي دفتر مشري هم پرغاړه درلوده.

نوموړي د دوحې ویاړمن تړون په هکله د ځرک مجلې ۱۱۶مې ګڼې سره ځانګړې مرکه کړې وه.

ښاغلي ستانکزي ددغه تړون په هکله د خپلو تاثراتو په لړ کې ویلي، چې د کب میاشتې په ۱۰مه نیټه د اسلامي امارت د غیور او عظیم ملت په استازیتوب د بې سارې قربانیو په ورکولو سره د تاریخ پاڼو کې یوه زرینه کارنامه ثبت کړه او له هیواده یې د امریکایي او ناټو اشغالګرو د وتلو تاریخي تړون لاسلیک کړ او له نږدې شل کلنې جګړې وروسته د لسګونه زره افغانانو تر وژل کیدو او معیوبېدو وروسته مغرورې امریکا په رسمي توګه خپله ماته ومنله او افغان غیور ملت د ازادۍ لپاره کېدونکې اوږده او سخته جګړه وګټله.

ښاغلي ستانګزي څرګنده کړې چې دغه تړون سل فیصده د افغانانو ګټې خوندي کوي، چې له مخې به یې څوارلس میاشتو کې ټول بهرني عسکر له افغانستانه وځي، افغانستان کې به یو ټولشموله او قوي اسلامي نظام منځته راځي او اسلامي امارت به د دغه ټولشموله حکومت د ذمه وار په حیث چاته اجازه نه ورکوي چې د غرب او ملګرو پرضد یې د افغانستان خاوره وکاروي.

نوموړي هغه راپورونه هم په کلکه ردکړي دي، چې ګواکې له امریکایانو سره ځینې داسې موارد هم لاسلیک شوي، چې له ملت څخه پټ ساتل شوي، بلکې ددې توافقنامې سره چې کومې دوه ضمیمې دي، هغو کې یوازې ددې توافقنامې شرحه ده، چې د امریکایي ځواکونو د وتلو څرنګوالی او نورو مادو شرحه پکې شوې ده.

توافقنامه کې د بین الافغاني مذاکراتو په اړه ښاغلي ستانکزي ویلي، چې دا خبرې به په خپله د افغانانو ترمنځ وي، او امریکایان به هیڅ راز مداخله نه پکې کوي، ددغو خپلمنځني مذاکراتو لپاره د اسلامي امارت مذاکراتي ټیم خبرو ته چمتو دی په دغو خبرو کې به د افغانستان د مختلفو قشرونو، قومونو، پرګنو او سیاسي احزابو استازي برخه لري او د راتلونکي اسلامي نظام په څرنګوالي او جوړښت به خبرې کوي.

ستانکزي صاحب داهم څرګنده کړې، چې دغو خبرو کې به کابل اداره د یو حکومت په توګه برخه نه لري، بلکې کیدای شي د یو سیاسي جهت او افغانانو په حیث به شتون ولري.

په دې هکله چې اسلامي امارت ولې د امریکایانو سره د خبرو میز او بالاخره یوې موافقې ته رسېدای شي او کابل رژیم سره یې هر وخت مخامخ خبرې رد کړې دي، ښاغلي ستانکزي ویلي دي، چې د کابل اوسنۍ اداره یوه بلواکه، لاسپوڅې، د امریکا له راتګ سره یوځای راغلې او په افغان ملت تپل شوې اداره ده، چې هیڅ راز مشروعیت نه لري او نه یې هم دوی د یو مشروع نظام په حیث منلو ته تیاردي؛ نو له داسې بلواکې ادارې سره چې د هیڅا استازیتوب هم نشي کولای، خبرو ته کیناستل د وخت له ضایع کیدو پرته نوره هیڅ ګټه نه لري.

ددې پوښتنې په ځواب کې چې ځینې خلک اندیښنه لري چې ښایي د اسلامي امارت په لیکو کې څوک د توافقنامې د

اخلال هڅه وکړي؟ نوموړي په ډېر ټینګار سره ډاډ ورکړی چې اسلامي امارت کې ډلې ټپلې نشته او ټول په یوه خوله د یوه اسلامي او متحد جهت په توګه دغې توافقنامې ته متعهد دی او د طالبانو منځ کې یې د دې ترون د مخالفت په اړه کیدونکي تحلیلونه د دښمن افواهات او پروپاګند بللي دي

د سیمې له هیوادونو سره د اړیکو په تړاو د ښاغلي ستانکزي نظر دا دی چې طالبان منځنۍ اسیا له هیوادونو، ګاونډیو هیوادونو او په مجموع کې له سیمه ایزو هیوادونو سره ښې اړیکې لري او په هر برخه کې مو وضاحت او ډاډ ورکړی دی، چې د اسلامي امارت په قیادت کې راتلونکی اسلامي نظام د سیمې د ټولو هیوادونو په ګټه دی، د ښاغلي ستانکزي په خبره د سیمې هیوادونه په هیڅ قیمت دغه خطه کې د امریکایي پوځیانو شتون نه شي زغملای او ویره لري چې د افغانستان خاوره به ددوی پر ضد وکاوري او همدا لامل دی چې دغو هیوادونو له افغانستانه د ټولو امریکایي ځواکونو د وتلو په هکله د اسلامي امارت له پالیسۍ څخه ننګه او ملا تړکړی دی.

په پای کې ښاغلي ستانکزي، د مسکو فرمتې غونډه کې د خپلې پګړۍ او شملې په اړه هم جالبه تبصره کړې ده او ویلي یې دي چې د نړیوالو کنفرانسونو اصول دادي چې هلته د هر ګډون کوونکي هیواد بیرغ وي، د بهرنیو چارو وزیر یې څنګ ته دریږي او یادګاري عکس اخلي،کله چې د روسیې د بهرنیو چارو وزیر ما څخه هم غوښتنه وکړه چې د عکس لپاره ورسره ودریږم، ماچې وکتل هلته د دولسو هیوادونو بیرغونه وو، خو د اسلامي امارت بیرغ نه و ؛ نو ما ددې لپاره چې د بیرغ د نه شتون تشه ډکه کړم د خپلې تورې پګړۍ، چې زیاتره یې زموږ مجاهدین په سر کوي، شمله په سر راکش کړه او له خپل نښان سره مې یادګاري تصویر واخیست.

## زموږ د ټولنې دود

وعَنْ أَبِي أَيُّوبَ : أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ قَالَ: لا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ، يَلْتَقِيَانِ, فَيُعْرِضُ هَذَا، وَيُعْرِضُ هَذَا، وخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

له ابو ایوب څخه روایت دی وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هیڅ مسلمان ته نده روا چې د خپل مسلمان ورور سره د دریو شپو څخه زیاته مقاطعه وکړي، دواړه سره مخامخ کیږي بو هم مخ اړوي هغه بل یې هم اړوي، د دوی دواړو هغه بهتر دی چې لومړی سلام واچوي.

شرحه

په حدیث کې بهتري هغه چا ته ورکړی شوه چې هغه شروع په سلام اچولو وکړي، مګر زموږ د ټولنې خلک بیا وایې اول دې هغه سلام واچوي نو دا خبره پدې معنی ده چې هغه له ما نه بهتر دی ځکه هغه لومړی سلام اچوي نو دهغه په بهتر والې او ځان په ټیټوالې اعتراف دی.

مشهوره واقعه

د حسین رضي الله عنه او د ده د ورور محمد بن الحنفیه تر منځ خفګان راغی، دری ورځې چې تیریدې نو محمد بن الحنفیه وویل که زه ورشم او حسین ته سلام واچوم نو دا پدې معنی چې زه ورڅخه بهتر یم نو او دا ښه نده، خط یې ورته ولیکل ورته یې ولیکل: اې حسین ته زما مشر ورور یې په پلار کې سره برابر یو، مګر ستا مور د پیغمبر لور او دجنت سرداره ده که د ټول جهان ښځې را غونډې شي د هغې مقام ته نشي رسیدای، نو ما دا بده وګڼله چې زه له تا نه بهتر شم له همدې کبله مې درته خط ولیکل چې ته راشه او اول ته سلام واچوه چې دا بهترې ستا په نصیب شي بیا حسین رضي الله عنه راغی او سلام یې واچول.

یادونه: محمد بن الحنفیه تابعي وو ستر فقیه د علي رضي الله عنه زوی او د حسن اوحسین د پلار لخوا ورور وو، حنفیه قبیله وه هغې ته منسوب دی.

د مشرقي ولايتونو د سنګرونو اتل

# شيخ فقير الله رحمه الله

## جهادي ژوند ته لنډه کتنه

ليکوال : م حق بيان

افغانستان چې تل لپاره دخپل تاريخ دزرګونوکلونوپه اوږدو کې دنړۍ دبيلا بيلو ابرقدرتونواو امپراطوريوهديره پاتې شوې اووګړې يې په هرمشکل ګړيوکې په اسلامي دريځ پاتې شوې او افغانستان يې دنړۍ دټولومسلمانانو دبرم او عزت سمبول ګرځيدلې او د افغانانو پرسر چې تل لپاره دبرياؤ او فتوحاتو ښکلې تاج ځليدلې ددې اصلي لامل دلويئ څښتن تعالی دفضل او لوړونې ترځنګ ددې برياؤو ډکې ټاټو بې ته په هرسخت مرحلوکې داسلام په لارښونو ښه پوهه لرونکې زړه ور علماءاومشران ورپه برخه کيدل دې چې دافغانستان په کچه دداسې په دين مين مخلص او زړورومشرانوله ټولګې څخه يومشراودروسي اشغال ددورې دجهادله بنسټ ګرو له جملې څخه يوبنسټ ګراوبيادهيوادپه کچه عموما اودمشرقي ولايتونوپه کچه خصوصا دسنګرونواتل اونوميالې څيره دعلم اوعمل دنګ منارشيخ القران مولانافقيرالله نورستاني رحمه الله ووچې دهغې جهادي ژونداو کارنامو ته لنډه کتنه به په لاندنيوټکوکې ذکرکيږي

شيخ القران مولانا فقيرالله (المطيع) رحمه الله چې دکانتوائ زوئ اودشارملک لمسي دنورستان ولايت وانت وايګل ولسوالۍ اړوند ژنچيګل (ارنس) نومې جهادپرورکلي په ۱۳۲۰هش کال په يوه ديندارة کورنۍ کې نړۍ ته سترګې غړولې لومړني زده کړه يې دخپل کلي ملاامامانو هريو ملاګل زراستاذاومولوي صاحب حق عبدالحکيم استاذڅخه ترلاسه کولووروسته دخپل مشرتره ملک يودمت چې يودين داره کس ووپه هڅو دمزيدزده کړې لپاره دکنړولايت پيچ درې اړوندبرکنډئ کلي مولوي محمداسرائيل خوا ته بوتله چې تردرې کلونوابتدايي زده کړو وروسته د ۱۲ ذکلنۍ په عمر دکنړولايت مرورې ولسوالۍ شلطن نومې ساحې ته لاړه هلته کې دوخت مشهورمحدث دبخاري شارح شيخ الحديث مولاناعبدالحالق رحمه الله چې په کوټکي بابامشهوروو هم استفاده وکړه بيادبادولايت اسمار او دانګام اړوندسيانړ نومې سيمې ته لاړه اوهلته يې دفقهې صرف نحواصول اودعلم ميراث ماهر عالم دين مولوى عبدالجلال رحمه الله سره ۱۲ کاله دغسې حالت کې علم زده کړه چې په دومره طويل موده کې يوځل هم خپل کلي او منطقې ته نه دې تللې تردې چې مورنئ ژبه هم ترې هيره شوې وه دمروجه علوموزده کړې ورسته ۲۵کلنۍ عمرکې ګاونډي هيواد پاکستان ته سفروکړه اوپه بيلابيلو مدرسوکې يېدقران تفسير او دحديثو علومو ترځنګ نورعلوم هم ولوستل دقران کريم تفسيريې دوخت مشهور مفسرين شيخ القران والحديث مولانامحمدطاهر پنج پيريي رحمه الله او دشيخ القران مولاناغلام الله خان رحمه الله دپنډې څخه څو څوارې ولوست اودحديثوکتابونه يې دوخت مشهورمحدث مولاناعبدالرحمن المينوى رحمه الله څخه دلوستلو وروسته داحاديثوځني کتابونه شيخ الحديث مولاناعبدالله رحمه الله دتهکال اودچترال ايون کلي مشهوراستاذالحديث مولانامستجاب صاحب رحمه الله څخه هم ولوستل :

### په نورستان کې ديني اواصلاحي خدمات

چونکې دنورستان ولس ۱۸۹۶ميلادي کال داميرعبدالرحمن خان په دورکې داسلام په مبارک دين باندې مشرف شوى دي اوبياترډيرې مودې نورستاني قوم کې تکړه اوپوهه لرونکې مصلح علماءوجودنه لرل اوولسونه بې تيرپه ځې زياتره کفري دودونو کې ښکيل پاتې وو کله چې مرحوم شيخ فقيرالله رحمه الله اوورسره ځونورعلماء دنورستان ساحې ته واردشول خپل قوم بې دکفري دودونوپه لوموکې ګيروليدل نوترلسوکلونوپورې دوام داراصلاحي هڅوپه پايله کې دالله تعالی په توفيق بشپړديني اصلاحاتوباندې سمبال اودراسخ عقيدې درلودونکې شول

### دکميونستي فکر په خلاف ذهنيتونه روښانول

(دهغويادښتونوپربنسټ چې مرحوم شيخ فقيرالله رحمه الله په خپل لاس يې کښلې څه داسى دې )

کله چې روسانودافغانستان په مکاتبواوتعليمي اداروکې دوخت بادشاه ظاهرشاه په اجازت دکميونستى فکراوعقيدى خپرولوخوزښتونه اوپروګرامونه پيل کړل اودزده کونکو فکرونه ذهنيتونه اوباورونه وربدل کړل اودوخت بادشاه ظاهرشاه لخواکميونستانوته دخپل ملحدانه افکاروپه مطبوعاتوکې دخپراوې اجازت ورکړه نودهيوادپه کچه ډيرکم يښ اوبااحساس علماءکراماودمکاتبوزده کونکودکميونستي افکارودترويج په خلاف مبارزه پيل کړه اوددغوعلماءکرام اومحصلينولخوادهرولايت باشعوروعلماءووته خبرداری ورکړې شوه چې په افغانستان باندې دکميونستي عقيدې سيلاب راروان دى بايدعلماءدخپل مسؤليت احساس لمخې خپل ولسونه ددې سيلابه دژغورلوهڅې ګرندئ کړي همدغه ووچې نورستان اوکنړولايتونوپه ټولوساحوکې دشيخ جميل الرحمن رحمه الله په مشري دځو بااحساسه

علماءکرامو خوزښت پیل شوهغوئ دهیواد نورو ولایتونو باشعور علماءو وسره داریکې ټینګولو ترڅنګ دکنړاونورستان په ټولوساحو وګرځیدل اودټولوسیمومشرانواوولسونوسره عمومي اوځانګړي ملاقاتونه وکړل اودقران اوسنت په رڼاکې دخلکوذهنیتونه روښان کړل اوددغې ملحدانه فکرپه خلاف یې دعملي جهادتلقین وکړه اودالړئ ۱۳۴۰ هش څخه نیولې په ظاهرشاه دداودخان ترکودتاپورې روانه وه اوکله چې داودخان دظاهرشاه تخت نسکورکړنوداودخان هم دتیرپه څیردډوبیښ مغزوعلماءاومحصلینوپه نیولو اوپه له منځه وړلو پې پیل وکړنو همداووچې ځینیو مهموکسانوهیوادپریښوده اوپاکستان ته مهاجرشول اوپاکستان ورته پناه ورکړاوپه پیښورکې یومرکزهم جوړشواوپوقیادي شورا هم جوړه شوه چې په لومړیوکې یواميريوقومندان اویوپې دخارجي چارومسؤل ټاکل شوي وو ودکمیونستانوپه خلاف دجهاددتیاریوبرنامې جوړیدل شیخ فقیرالله رحمه الله اوملګرې یې له نورستانه پاکستان ته راتلل اوددغې شورا سره اړیکې ساتل اوپروګرامونوکې به برخې اخسته په لومړي سرکې امیرمولوی حبیب الرحمن شهید رحمه الله دلغمان ولایت اوګل بدین حکمتیار قومندان اوبرهان الدین رباني یې دخارجي چارومسؤل ټاکل شوي وو.

## د۷ ثور د کمیونستانو کودتا او د جهاد پیل

کله چې په ۷ ثور۱۳۹۷هش دکمیونستانوپه لاس دداودخان حکومت نسکورشو او واک یې کمیونستانو ونیوه دمخکنې ویښتیاپربنسټ له کودتا یوازې درې ویښت ورځې څنډسره دشیخ فقیرالله رحمه الله په قومنده او دشهیدمحمدسفرنورستانی رحمه الله او د قاضی اخونزاده کنړي په سرګروپئ کې دجوزا په اوله نیټه دکنړولایت اړوندماټوکي ولسوالۍ دکمیونستي حکومت پرخلاف مسلحانه  چریکي کامیاب عملیات ترسره شوپه نتیجه کې پشړدول ولسوالۍ فتحه اوغنیمتونه یې ترلاسه کړل چې داپه افغانستان کې دکمیونستانوپه خلاف دهیوادپه کچه لومړني اقدامي جهادي عملیات ګڼل کیږي اګرچې له دې وړاندې دکنړولایت دشیګل په سیمه کې دمجاهدینویومشورتي غونډه باندې دکمونستانو لخوابریدترسره شوې ووچې د مجاهدینوسخت مزاحمت سره مخ شو په پایله کې غنیمت هم اخستل شوې وو:

دیادونې وړده چې کوم قیادي شورا په پیښورکې جوړه شوې وه دکودتا وروسته دشورا امیر شهیدمولو ي حبیب الرحمن داعضاءوپه مشاورت اوتوافق دکمیونستانوپرخلاف دجهادپیل اعلان په داسې حالت کې وکړه چې برهان الدین رباني په یوسفرسعودي عربستان ته تللې وو اودشورا مشرشهیدمولوي حبیب الرحمن رحمه الله له اعلانه وروسته عملي پیل لپاره افغانستان داخل ته  ولاړه چې په پایله کې شهیدهم شواوربانې چې کله دسفرنه راستون شواودعملي جهاددپیل اعلان نه خبرشونودمخالفت اظهارېې وکړاوودې سره په مرکزي قیادي شورا کې اختلاف اوګډوډي رامنځ ته شوبرهان الدین رباني اوحکمتیارسره لارې جلاکړې اودشورا اعضاءهم سره وویشل شول اودایې دتنظیمونو دتعدد بنسټ وګرځیده او مولوي  فقیرالله رحمه الله په دغوحساسوحالاتوکې چې مرکزي قیادي شوراً کې هم ګډوډي راغلې وه دچالورې ونه نیوه بلکې ددواړولوریوڅخه ترهغې دېریکون اعلان وکړچې دقیادي شورا سره متحدشوې نه وي یاپې عملي جهادته وړاندې شوې نه وي اوپخپله نورستان اوکنړونوپه کچه متحدانه توګه دشیخ فقیرالله رحمه الله ترقیادت لاندې دعملي جهادبهیر روان وساته .

## د روسانوپه خلاف ځانګړې فعالیتونه اوکارنامې

شیخ فقیرالله رحمه الله دتیرجهادیواځې له بنسټګروسخه نه وو بلکې دکنړاونورستان ساحوکې دکنړمرکزاسعدابادترفتحې لس کلنه موده کې بیا دکنړدفتحې ورسته دجلال ابادترفتحې چې څومره لوئ اوبریالې جهادي عملیات ترسره شوې دهرمهم جنګونوعمومي قومندان په توګه په لسهاؤو جنګونوېې برخه لرلې چې ځنیوجګړوکې په سلهاؤروسان اود روسانو شوبلې له منځه وړل شوې اوسوزول شوي دي:

بل دا چې شیخ فقیرالله رحمهالله د جهاد پیل کې چې کله جهادي تنظیمونه لانه وو ډیرشوې نودکنړاونورستان دټولو مجاهدینو متحد امیر وو اوچې کله تنظیمونه ډیرشول او جهادي چاپیریال پیچلې اواختلافات زیات شونو په داسې پیچلې حالاتو کې شیخ فقیرالله رحمه الله په دې سل په سلوکې بریالې شوې ووچې دکنړاونورستان په کچه دټول جهادي تنظیمونومتحده جهادي شورا وساتي اوچې څومره مهم اوسترجهادي عملیات ترسره کیدل نوددغې متحدې شورا په هماهنګې ترسره کیدل اګرچې پخپله دکنړاونورستان دحزب اسلامی ولایتي مسؤل ووددغې اتحاداواتفاق له برکته کنړولایت دهیوادپه کچه لومړنئ ولایت ووچې دروسانو دمنحوس پنجوخلاص شواوبل داچې ددغې متحدې شورا له برکته دامکان ترحده په کنړاونورستان کې دتنظیمي جنګونومخه ونیول شو

همداوجه وه چې شیخ فقیرالله رحمه الله په کنړاونورستان کې ټولومجاهدینوته یوشان ته خوښ وو دکوم یوتنظیم مجاهد ورنه ناخوښ نه وو دنن څخه څه موده وړاندې یوشخصي ناسته کې یوملګري ورنه پوښتنه وکړه چې څه وجه کیدلې شي چې دکنړاونورستان هرقوم اوتنظیم وګړې تاسره مینه لري اوله تاڅخه خوښ دي هغه په جواب کې څه داسې وویل دالله پاک دځانګړې معونت ترڅنګ دالاملونه هم کیدلې شي چې  (۱) په طول  دانقلاب کې ماهیڅ ډول توپیري چلند دقومونو اومذاهبو او تنظیمونو د وګړو ترمنځ نه ده کړې بلکې له ټولوسره په عدالت دبرابرئ چلندکړې.

(۲) په ټول جهادي دورونوکې ماهیڅ کله مجاهدین اوبیت المال په ذاتي موخواواغراضوکې نه دي استعمال کړې.

(۳)  په بیت المال کې مې دامکان ترحده خیانت نه ځان ساتلې همداوجه کیدلائ شي  چې دخپل قومیانواوتنظیمي افرادوترڅنګ دنورتنظیمونو او قومونو افرادو راسره مینه ساتلې.

شیخ صیب فقیرالله رحمه الله په جهادکې څوواری ټپي شوې اوڅو څوواری یې دروسانودبمبارهدف هم ګرځیدلې اوڅوواری یې

دژوندئ نیولویالمنخه وړلوپه خاطردروسانوځانګړي قطعات پیاده شوې یاله طیاروشکته کړي هم وو

یوواړي خودکنړولایت مانوګي ولسوالی اړوندشاهي لام سیمه کي چي هلته د شیخ فقیرالله رحمه الله ځانګړي مرکزوو د ۱۲۰۰ روسانو لخوا محاصره شوي هم ووچي شیخ فقیرالله د۷ کسانو مجاهدینوسره په ملتیادهغوټولوپه میرانه مقابله وکړه اودیرروسي عسکرومړي یي په ساحه کې پاتي شوي وواونورويي دتیښتې نه کارواخیسته نودالله په فضل محاصره ماته شوه

## دتنظیمي اختلافاتواوجګړو پرمهال دریځ

(دهغویادښتونوپراساس چي شیخ فقیرالله رحمه الله په خپل لاس لیکلي )

کله چي دکنړولایت مرکزله پاسه شاه بازئ سیمه چي دکنړمرکز حاکمه نقطه ګڼل کیدله دروسانواو داخلي کمیونستانو دکلونو پاخه سنګرونه قرارلرل شیخ فقیرالله رحمه الله دقومندي لاندي مجاهدینو ورباندي بریدوکړه چي په پایله کې ۹مجاهدین شهیدان شول چي ۴کسان پخپله دشیخ صاحب رحمه الله کلیوال وو(۱) شهیدعبدالکریم (۲) شهیدقومندان غلام حسین (۳) شهیداخترمحمد (۴)شهید عبدالصمد تقبلهم الله اوکڼ شمیرېي ټپیان شول چي دخیرالناصرین ذات په مدداونصرت دحاکمی نقطی ټولی پوستی اوساحی فتحی شوی داووچي روسان اوکمیونستان دکنړله مرکزه بې له جګړي په یوه شپه کې وتښتیدل اودهرتنظیم مجاهدین بې له کومه مزاحمته دکنړمرکزاسعدابادته ننوتل اودخودسرووسله والو په لوټ ماریواوبدنظمیوپیل وکړه خوبیادشیخ فقیرالله رحمه الله په ډیرهځودټولوجهادي تنظیمونوڅخه یوه متحده شورا جوړه شوه خوالبته شهیدشیخ جمیل الرحمن رحمه الله په ځنګ کې جلاشورا وساته دکلنوورسته چي کله شیخ فقیرالله په دي پوهه شونونوپه کنړکي دتنظیمونواوقومونوترمنځ جګړي ته وارږسیږي اودایې شرعاناروګڼله اود کنړ مرکزي پریښوده اوخپل ټاټوبي نورستان ته لاړه اوپه کنړکي مجاهدینواوقومونوترمنځ دجګړي لامل نه شواوپه کورکي ناسته یې خوښه وګڼله.

لنډه داچي دافغانستان په بیلابیلوولایتوکي دتنظیمونوترمنځ جګړي کیدلي خوشیخ فقیرالله رحمه الله کله هم په کنړاونورستان کي دمجاهدینوترمنځ په جګړه کې ښکیل شوي نه دي اونه یي دجګړي لامل ګرځیدلي .

اوپاتي شوه دا خبره چي شیخ فقیرالله رحمه الله په تیر جهادکي دحزب اسلامي لخوادکنړ او نورستان دټول جهادپه اوږدوکي ولایتي امیراومسؤل او دهیواد په کچه دحکمتیار دباوري قومندانانوڅخه ووخوسره له دي دشیخ فقیرالله رحمه الله په لاس لیکلي شویویادښتو نوپربنسټ کله چي په کابل کې دحزب جمعیت اونوروجنګونوپه وروستیوکي شیخ صاحب رحمه الله له حزب اسلامي څخه بایکاټ اوپریکون کړي وو اولامل یې پخپله څه داسي لیکلي دي دجلال ابااددفتحې ورو‌سته په کابل کې د کمیونستې حکومت مشرډاکټرنجیب اودګلیم جمومشردوستم ترمنځ ناچاقي اواختلاف پیداشودجمعیت مربوط قومندان احمدشاه مسعودسره اړیکه ونیوله اوپه جبل السراج کې سره ټرون وکړه چي یومشترک ایتلافي حکومت به جوړکړي اودمجاهدینودحکومت په نامه به اعلان کړي اوهمدغسې یې وکړه هم کابل ته دحزب اسلامی مجاهدین دیوې لورې ننوتل اودبل لورې نه جمعیت او کمیونستانو په مشترک ډول دحزب اسلامی په مجاهدینو بریدوکړه له دي وخت څخه ترکلونو دایتلافی حکومت اوحزب اسلامی ترمنځ جګړي رواني وي بیانو ددې په ترځ کې داسې وخت هم راغي چي دحکمتیارحزب اسلامی اودکمیونستې ګلم جم مشر عبدالرشید دوستم سره ایتلاف جوړکړه دشورا عالي هماهنګي انقلاب اسلامي افغانستان په نوم باندې نوله دغي ایتلاف له وجې دحزب اسلامي مخلص قومندانان اومجاهدین دحکمتیارڅخه ناراضه شول چي له دغې جملي څخه قومندان شیخ فقیرالله رحمه الله هم ووچي تردغووختونو کمونستانو سره جنګ لپاره ۳۰۰خپل مجاهدینوسره په کابل چاراسیاب کې شتون درلوده دحکمتیار څخه بایکاټ اوپریکون اعلان کړه اوخپل ټاټوبي نورستان ته ستون شواوپه کورکینا ست .

## داسلامی امارت سره پیوستون او دملاتړي اعلان:

کله چي دکابل دفتحې و روسته دمجاهدینورهبران په دي ونه توانیدل چي یومتحداسلامی حکومت جوړاوشریعت نافذ کړي چي دشهیدانو هیلي اوارمانونه ترسره شوي وې بلکې بالعکس دشهیدانو او دمجاهدینو ارمانونه اوهیلي دتنظیمي جګړوقرباني شواوهیوادیې دناامنیو اودشر او فسادزانګو شوه نود قندهار له لورې دطالبانواسلامي غورځنګ دامیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهدرحمه الله په مشرئ سراپورته کړه اوپه ډیرکمه موده کې دډیروفتوحاتو برخمن شواودفتوحاتولړی یې آن ترجلال اباداوکنړراورسیده نودطالبانوداسلامي غورځنګ له لوري ځوواري وفدونه شیخ فقیرالله رحمه الله خواته نورستان ته لاړل چي تاسویوهدف لپاره جهادکړې وودادي چي طالبان هم ددغې هدف دپلي کولولپاره پورته شوي دي تاسودوئ سره پیوستون اوملاتړاعلان کړئ خوشیخ فقیرالله رحمه الله داسلامي نظام دشرعي اصولوموافق ارمانجن ووپه دغه اساس هغه دوفدبشپړقدراوعزت کولو ترځنګ داسې ووېل چي ستاسوپه راتګ زه ډیرخوښ یم اوستاسوکړنوسره موافق هم یم البته اوس تاسویوتنظیم یاستئ څکه نواوس ستاسوخواته نه درځم وفدلاړه خوچي کله دطالبانوغورځنګ کابل هم فتحه کړه اودهیوادزیاتره برخه یې تراواک لاندي راغلل نوپه قندهارکي دزرګونوعلماء کرامو اوطالبانو او مخور مشرانو دغورځنګ مشرملامحمدعمر مجاهدسره شرعي بیعت ترسره کړه اوهغه ته یې دامیرالمؤمنین لقب په اوهیوادیې داسلامي امارت په نوم ونوماوه همدغه ورځ ووچي شیخ فقیرالله رحمه الله دخوشحالئ نه نه ځاییده دشیخ فقیرالله رحمه الله دځنګ ملګرې ددغې ورځیې دسترګولیدلي حال راته څه داسې بیان کړه کله چي درادیوله لارې دملامحمدعمرمجاهدرحمه الله سره دشرعي بیعت خبره اوداسلامي

امارت نوم واوریده نودزیات خوشحالۍ له کبله چې څوک به ورسره په دغه ورځ میلاویدل دسلام څخه وروسته به ویل چې افغانستان اسلامی امارت او امیرامیرالمؤمنین یې ملامحمدعمر مجاهد دې اوددې خبرې تکراربه یې هرچاته کولو.

له دې وروسته له څنډپرته خپل څوئ شیخ منیب الله حفظه الله داسلامي امارت لخوا دکنړو لایت والي مولوي عبدالهادي رحمه الله خواته اودهغې په وساطت دننګرهاروالي اودشرقي زون رئیس مولوي عبد الکبیرحفظه الله خواته ولیرداوه چې ته ورشه اودوئ سره ملاقات وکړه نورنوددغې شرعي نظام ملاترپرمونږلازم دې په پایله کې دخپلوتولومجاهدینوسره په مشاورت اوموافقت جلال ابادته لاړه داسلامي امارت مشرانوسره ملاقاتونه وکړل اوداسلامی امارت سره پیوستون اوملاتړاعلان کړاوضعیف العمري له کبله کومه رسمي دنده وانه خیسته اوپه خپل ملاتړي اوپیوستون د اسلامي امارت سره ترمرګه وفاوکړه.

## امریکایي اشغال او د اسلامي امارت له سقوط وروسته

دروسانو او کمونستانوپه خلاف دتیرجهادرهبرانو او قومندانانوڅخه داسې خوش قسمته ډیرکم او د ګوتوپه شماروليدل شول چې هغوئ پخپل تیرجهادي عزم کې ثابت قدم پاتې شوې وي او شیخ فقیرالله رحمه الله هم دتیرجهاددهغومبارکوانیک بختو خیروڅخه یودې دشرقي طاغوت سره پنجه ازمائي ترڅنګ دغربي طاغوت مخې ته هم پخپل ایماني فولادي جهادي عزم ثابت قدمه پاتې شو.

شیخ فقیرالله رحمه الله دامارت دسقوط او دصلیبیانو دیرغل پرمهال له مخکې څخه دخپل ټاټوبی نورستان پرځائ دکنړولایت نرنګ ولسوالۍ اروند نرنګ په کلي کې اوسیده اوهلته کې شخصي یوکورهم درلوده چې دفامیل سره یکې میشته ووپه پیل کې چې کله امریکایانوافغانستان اشغال کړدامریکایانوقرارګاوې په کنړاونورستان کې شتون نه درلوده کله کله به یې دجلال ابادڅخه دامریکایانو دشوبلو قطارونه په ګزمه کنړ ته راتلل اوبیرته واپس تلل له دغې فرصت څخه په استفاده شیخ فقیرالله رحمه الله صاحب دکنړولایت مرکزپورې مربوط بیلابیل کلیواودنرنګ اوڅوکۍ ولسوالیوپورې اړونددرې لکه باډیل اودیوه ګل اوپه بیلابیل کلیوکې دجهادپه اړه دذهن سازئ اوعامه پوهاوي ډیرزیات پروګرامونه اودعوتي غونډې ترسره کړل اوچې کله دکنړولایت مرکز اړوند توپچي ساحه کې دامریکایانونظامي قرارګاه جوړه شوه نوپه کنړکې هغه لومړئ کس چې امریکایان یې دنیولو پلان درلودل شیخ فقیرالله رحمه الله ووخوامریکایانوفکرکاوه چې سپین ږیرې دې اودلته کورلري په مناسب تاکتیک به ونیسوخو شیخ فقیرالله رحمه الله دهغوئ له شوم پلان څخه په خبریدودکنړه نورستان ته منتقل شواوپه نورستان ولایت کې جهادي خوځښت دنورومجاهدین ملګروسره هماهنګ کړه چې یو منظم جهادي تشکیل بنه غوره کړي خوچې کله امریکایانوته دشیخ فقیرالله رحمه الله ددوئ دلاسه دوتلواونورستان کې خپل جهاد پرور ټاټوبې ته درسیدو خبرمعلوم شونو دکنړولایت په څوسپین ږیروا ومشرانو مشتمل یو وفدشیخ رحمه الله خواته ولیږلوچې ته بیرته کنړولایت ته راشه یامونږ ستاملاقات ته ستاکلی ارنس ته درځوکله چې وفدشیخ رحمه الله خواته لاړه نوشیخ رحمه الله ته دخپل ساحې مشرانو او مخلص مجاهدینودځه وخت لپاره د ځان پټوني غوښتنه اوکړه خوهغه وویل چې زه ځان نه پټوم بلکې زماخودغه ارمان دې چې امریکایانوته دخپل ایماني احساساتومخامخ اظهاراوکړم په دغه اساس هغوراغلیووفدکسانوته وویل چې زه خواوس لپاره کنړولایت ته نه درځم البته که امریکایان زمالیدوته راځي نوپه لاندنیو شرائطوراتلائ شي اودشرایطو په نه پابندئ کې به دبدوعواقبومسؤلیت دامریکایانوپه غاړه وي .

(۱) امریکایان نورستان ساحې ته چې راځي نو فضاءکې به جازونه نه پاځوي .

(۲) نورستان ولایت وانت وایګل ولسوالی اړوندارنس کلي (چې دشیخ فقیرالله رحمه الله خپل کلي دې ) کې یوه پوله وټاکله چې ددغې پولې نه دیخوابه امریکایان غیرمسلح حالت کې راځي .

(۳) دارنس په کلي کې دمحدودې مدې لپاره مذاکراتو په نامه دپاتې کیدواجازت لري چې نږدې پنځه ساعتونه ټاکلې وواودټاکلې ساعتونوپه ختمیدوسم دلاسه دارنس دکلی دحدودوبه وځی.

کله چې وفدامریکایانوته واپس ورغلل نوهغوئ هم دشیخ فقیرالله رحمه الله ټول شرطونه ومنل اودکنړاونورستان شپیتوپورې نامورسپین ږیري اومشران ځان سره کړل چې دهغوئ له جملې څخه ملک محمدزرین مشواني اوملک عبدالجبارننګلامي شهیدحاجي ملک جمعه ګل دنورستان اومعاوین حاجی دکنړبرکنډي اوداسې نوردي دټاکلي اصولواوشرایطوموافق دنورستان ولایت وانت وایګل ولسوالۍ اړوندارنس کلي ته داخل شول اوپه کومه پوله چې دامریکایانوغیرمسلح کیدل وه هغه ځایه څخه یوازې څلورامریکایانوته او دری ملکانوپه ملتیااجازت ووچې دمذاکراتي ټیم په شکل شیخ فقیرالله رحمه الله خواته هغه ځانګړې خونې ته بوتلې شی چې هلته کې شیخ صیب شتون درلوده.

دامریکایانوسره دماذدیګرله مانځه وروسته مخامخ خبرې پیل شوې اوترڅلوروساعتونوپې دوام وکړه

دیادونې وړده چې دامریکایانوله لورې دخبرولپاره راغلې امریکایې منصب داریولبناني الأصله مسیحي ازموده امریکایي ووچې په عربي ژبه هم روانه خبره کولې شواوددواړوترمنځ زیاتې خبرې په عربي ژبې ترسره شولې اوڅه خبرې به دترجمان په توسط هم کیدلې خووروسته جوته شوه چې دامریکایانوله لورې راغلې منصب داردامریکایانولوړ پوړې عسکري اونظامي چارواکې وودجان ابی زیدپه نوم باندې چې دامریکایانو دافغانستان اوعراق په شمول دمرکزي اسیا عمومیي مشرهم پاتې شوې

لله الحمد د الله په مرسته د مکالمې او مذاکرې ناسته په داسې بنه پایې ته ورسیده چې امریکائي لورې کافي اغیزې لاندې وو د دغې مذاکراتو په پایله کې هم دوئ ونه توانیدل چې خپلوشومو موخوته ورسیږي چې شیخ صیب ځان سره بوځي وجه داوه چې دشیخ صیب تیرجهادي هیبت ترڅنګ په ارنس کلي کې مجاهدینوفضاءپه داسې ډسپلین اماده کړې وه چې ددوئ په رواني حالاتواغیزوکړې

اویوه جمعه پس امریکایانو دشوبلو یواوږد قطار بیا نورستان وایګل ولسوالۍ سیمې ته راغلل خوداوار دارنس کلي مرکزته رانغلل

بلکي دارنس په حدودوکي پروت دځميوبيلي په نوم سيمي پوري راغلل اودارنس ټوله دشوراً غړي وروغوښتل چې تاسودمولوي فقيرالله ملګرتيالاس واخلئ اوولسونه ډير وډارول اودلسوورځومهلت اعلان کړه چې دومره موده کي يابه مولوي فقيرالله امريکايانو خواله به ورځى يابه بمباروربراندی کيږي

سه کافي موده وروسته دارنس کلي اړوند اتازه سيمي کې پروت دمولوي غلام رباني رحمه الله په مدرسه جمات اوکورونوپه توره شپه دوحشت ډکه بمباروکړه چې نه کسان زنانه اوماشومان پکې شهيدان شول

اوسهارپه رڼاکيدوسره په طيارو اوشوبلو کې په سوونو امريکايان ارنس کلي ته ورسيدل نو همداوو چې دکلي بى وزله عواموامريکايانوله وحشته ساتلوپه موخه شيخ فقيرالله له کوره ووته اوپاکستان ته يى مهاجرشواودهجرت په دياركى دنورستان ولايت داسلامى امارت سابقه مسؤل شهيد شيخ دوست محمد تقبله الله اودکونړولايت سابقه مسؤل شيخ عبدالرحيم حفظه الله په شمول ډيرو مسؤلينوسره به په دوامداره توګه په جهادي امورو کې مفيدې مشورې اودعاګانې شريکولې اوددوئ به شيخ صيب سره له نږدې مجلسونه کيدل

شيخ صيب فقيرالله دضعيف العمرئ اودمسلسل بيمارتيا له کبله په خپله خو په سنګر کې دعملي شرکت جوګه نه وو خوخپل يوستئ زوی شيخ منيب الله يې تل لپاره مجاهدينوسره مل ساتلې داسلامي امارت دنورستان په ګچه په مختلفو دندو مسوليت هم ترسره کړې اودمرکزي کميسيون دشرقي حلقې غړي هم پاتې شوې.

شيخ فقيرالله رحمه الله دلسوکلنوسخه زيات اوږدې بناروغى وروسته چې څلور نيم کال يې شديدعلالت په بستر تير کړ د چهارشنبى ورځ ۴/شوال/ ۱۴۴۱هـق [چى۲۷ /مى/۲۰۲۰ ز او ۷/جوزا/۱۳۹۹هش سره سمون خوري ]دفاني نړئ څخه سترګه پټه کړه انالله وانا اليه راجعون اودارهجرت پښوراړوند بدوسيمې دعمومى قبرستان څنګ کی شخصي قبرستان کې خاوروته وسپارل شو.

# انسان چه قدر مخلوق ناتوان است؟

ر- فطرت

الله متعال توانمندی ووضعيت مشرکين را در اين آيه مبارکه اين چنين بيان ميکند.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوا لَهُ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ لَنْ يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَا يَسْتَنْقِذُوهُ مِنْهُ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ.

ترجمه: ای مردم! مثلی زده شده بدان گوش فرا دارید! آن بتهای جماد که به جای الله می‌خوانید هرگز بر خلقت مگسی هر چند همه اجتماع کنند قادر نيستند، و اگر مگس (ناتوان) چيزی را از آنها بگيرد قدرت بازگردان آن ندارند، (پس بدانيد که) طالب و مطلوب (يعنی بت و بت‌پرست يا عابد و معبود يا مگس و بتان) هر دو ناچيز و ناتوانند.

بدون شک انسان در برابر قدرت الهی توان هيچ کاری را ندارد، حتی اگر مگسی از انسان چيزی را بربايد توان بر گرداندن آن را ندارد، وقتی انسان اين قدر نا توان وضعيف است؟ تمرد وسرکشی آن در مقابل قدرت الله نشان بی خردی وعلامه ي جهالت آن است.

جهل در مقابل علم نيست، بلکه جهل در مقابل عقل وخرد است، انسان وقتی قدرت نوشتن وکتابت را داشت به معنی آن نيست که ديگر جهل در اطراف آن خيمه نمی زند واز وادی آن رخت سفر بسته است، ما بسا انسان های باسواد بی خردِ داريم که زندگی شان به دور از منطق انسانيت، اخلاق شان در رديف چهار پايان بلکه بدتراز آنهاست.

کشور های ابر قدرت دنيا با داشته های شان دنيارا تهديد به نابودی ميکردند، بافکر فرعونی وانديشه شدادی درسدد بلعيدن دنيا بودند اما در مقابل يک ويروس نا مرئی به زانو در آمده به عجز ودر ماندگی خويش اعتراف ميکنند.

نزول ويروس کرونا بلاي بي درمان از طرف الله به عنوان لشکر بی مزد وسلاح کشنده در مقابل طغيان گران عصر- برای مسلمانان رحمت وبرای کفار غضب است. ويروس که دنيارا در مانده ساخته است وتا هنوز دنيا از کنترول آن عاجز مانده اند يگانه راه کنترول آن وقايه، وعلاج آن بلند کردن دست احتياج به درگاه الله بی نياز است.

پس بآييد! فرصت را غنيمت شمرده برای نجات خويش وسر بلندی ملت مسلمه دعا کنيم.

# غازي عبدالصبور سالنګي اتل او قهرمان!

د ـ مختار

غازي عبدالصبور سالنګي چې په کورنیو چارو وزارت کې یې دنده لرله او له دوه امریکایي سلاکارانو سره یې نژدې اړیکې لرلې، دغه سلاکاران د وزارت په رهبرۍ کې وو او د وزارت له رهبرۍ پرته هر چا نشوی کولای د دوی دفتر ته ځان ورسوي

کله چې په بګرام کې د امریکایانو له خوا قران عظیم الشان له نورو کتابونو سره یوځای په اور وسوځول شو نو غازي عبدالصبور سالنګي خپل اسلامي او افغاني احساس مجبور کړ چې له خپل اسماني کتاب او خپلې سپیڅلې عقیدې څخه دفاع وکړي

غازي عبدالصبور سالنګي د خپلې دندې پرمهال له ماسپښین وروسته په وزارت کې د امریکایي سلاکارانو دفتر ته چې د دروازې کوډ ورسره وو، داخلیږي او مخامخ په خپله تفنګچه لومړی سلاکار مارچینتې او بیا دوهم سلاکار لوفتیس تر حملې لاندې نیسي او ځای پرځای یې وژني

نوموړی بیرته په ډیر ځانګړي تکتیک او هنر له وزارت نه روغ رمټ ځان وباسي

له دغې ویاړلې او تاریخ سازې اتلولۍ وروسته غازي عبدالصبور سالنګي د څلورو کلونو لپاره ایران ته ځي او له څلورو کلونو مهاجرت وروسته خپل کلي ته راستنیږي چې بیا د هغه وخت د کابل امنیه قوماندان ایوب سالنګي لخوا چې د غازي ایوب سالنګي کلیوال هم وو، امریکانو ته د ښه وفادار دوست په صفت ځان ښودلو لپاره غازي عبدالصبور د یوې ناوړې توطئې په مټ نیسي. او په ۲۰۱۶ م کال کې یې امریکایانو ته تسلیموي چې په هغه وخت کې د غربپاله رسنیو له خوا غازي عبدالصبور سالنګي د ترهګر په صفت معرفي شو او زندان ته ولیږدول شو

دادی اوس له څلورو کلنو بند وروسته تیره ورځ د باګرام له کرغیړن زندان څخه ازاد شو، پخپله د غازي جانان ته، د ده کورنۍ ته او د ده لارویانو ته د زړه له کومې مبارکي وایم

ګرانو هیوادوالو! دغه زمونږ اصلي اتل او قهرمان دی، د خپلې خاورې، خپلې عقیدې او پاک قران نه یې دفاع وکړه، ده سره د اتلولۍ لقب خوند کوي، افغانستان همیشه په خپل تاریخ کې داسې بچیان لري، چې هیڅ وخت غلامي نه قبلوي او د یرغلګرو په ژامو کې یې غاښونه ور شمیرلي دي

نو راځئ خپل اصلي اتلان ولمانځو او د هغوی کړنې وستایو

یادونه: د عبدالصبور پلار د حزب اسلامي غړی وو، دا چې اوس دی له زندانه د طالبانو د بندیانو په لیست کې یا د حزب اسلامي د بندیانو په لیست کې راخوشي شوی، دومره مهمه خبره نه ده، د خوند ځای دادی چې داسې یو اتل له زندانه په لوړ سر راووت او ځان یې د تل لپاره په تاریخ کې د اکبرخان غونډې ثبت کړ، افغانان به ورباندې فخر کوي.

## اې له غرب نه راغلیه سیکولره!

د ازادۍ نعره له غلامي خولې سره نه ښايي، په غلامه خوله باید د غلامۍ داستانونه، پردیو ګټو ته وفاداري او د سرټیتۍ نظمونه زمزمه شي، هغه خوله د ماتولو وړ ده چې په غلامۍ او پردیپالۍ یې همیشه رزق پیدا کړی او بیا یې په ډیره سپین سترګۍ د ازادۍ نغاره غږولې ده، د ازادۍ نعره د طالب جان سره زیب کوي؛ ځکه د طالب په مخ کې نورانیت، په زړه کې قوي ایمان او په عمل کې د رب لایزال فرمانونه دي، طالب دې ولس ته عزت وربښلی، پاکه خاوره کې یې یرغلګرو ته د سر په کاسه کې اوبه ورکړي، یو ځل بیا یې دغه خاوره د متجاوزینو په هدیره بدله کړه او د ازادۍ ویاړ یې په خپل نوم ثبت کړ، ډیر ډیر دې ورته مبارک وي. زه او ته دواړه د طالب جان له ښکلي مخ او پاکې ارادې نه لوګی شو.

# د حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله

## د قبر سپکاوی د قیامت له علاماتو څخه دی




مفتي محمدګل سعيد

هومره خلک يې زيارت کا پس له مرګه
څه بازار وي په مزار د درويشانو
بادشاهان ددې دنيا واړه پراته وي
لکه خاورې په دربار د درويشانو

په شام کې د اسلام عادل خليفه اميرالمؤمنين عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د ناز په خوب ويده ؤ. د اسلام ضد عناصر او د اولياؤ دښمنان هر وخت دا کوښښ کوي چې د خدای دوستان د ناز په خوب کې هم آرام نه پريږدي. په ډير تأسف سره چې د سوريې هيواد د شام په ادليب ښار کې د اسلام د مشهور او عادل واکمن خليفه حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله او د هغه د ميرمنې مقبره سپړل شوې اور ورته اچول شوی او د جسدونو بې حرمتي يې شوې ده، چې دا کرغيړن عمل په سختو ټکو غندل په کار دي. د ګردې نړی مسلمانان بايد په يوه غږ د يهودو او نصاراؤ د زامنو دا منحوس کردار وغندي او دا کړنه يې د انسانيت او اسلاميت ضد عمل وګڼي. دا ډول ناوړه کړنې د هغو شريرو عناصرو کار دی، چې د مسلمانانو ترمنځ کرکې او نفرت ته لمن وهي، د مقدساتو توهين کوي او په علني توګه د اسلام ضد عمل تر سره کوي.

رسول الله ﷺ وړاندوينه کړې ده، چې امت به يې دپخواني امتونو ټول ناوړه اعمال خپل کړي، تردې چې له هغوئ څخه به هم درې لويشتې مخکې شي، ددې درې څيزونو په جمله کې يو د قبرونو خېړل دي.

په رښتيا چې په اسلامي ټولنه کې د قبرونو سپړل پيل شوي دي، که لامل يي هر څه وي، ولې دا کار په ډيره چټکی سره روان دی، خلک پخواني قبرونه سپړي او لوټوي يې، دا عمل شرعاً يو ممنوع او ناجائز عمل دی او د قيامت له علامو څخه شمارل شوی دی.

په اسلامي نړۍ کې داسې پيښې له شميره زياتې هره ورځ تر سترګو کيږي، په بيلابيلو نومونو د اولياؤ او لويانو قبرونه سپړل کيږي. مسلمانان په عمومي طور کمزوري شوي او په داسې کړنو باندې

هـيـخ احساسـات نـه پـاروي. حضـرت رسـول اكـرم  ددې حالـت وړاندوينه هم كړې ده. امام أبو عبد الله الحاكم محمد بن عبد الله النيسابوري (المتوفى: ٤٠٥هـ) پـه المستدرك على الصحيحين (٤/ ٥١٦) كـې او أبو عبد الله محمد بن وضاح بن بزيع القرطبي (المتوفى: ٢٨٦هـ) په البدع والنهي عنها (٢/ ١٣٧)كې لـه حذيفه بن اليمان ﷺڅخه د يو مرفوع حديث روايت رانقلوي، چې فرمايلي يي دي:" لَتُنْقَضَنَّ عُرَى الْإِسْلَامِ عُرْوَةً عُرْوَةً , حَتَّى لَا يَقُولَ عَبْدٌ: مَهْ مَهْ , وَلَتَرْكَبُنَّ سُنَنَ الْأُمَمِ قَبْلَكُمْ حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ , لَا تُخْطِئُونَ طَرِيقَهُمْ , وَلَا يُخْطِئُكُمْ, حَتَّى لَوْ أَنَّهُ كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ مِنَ الْأُمَمِ أُمَّةٌ يَأْكُلُونَ الْعَذِرَةَ رَطْبَةً أَوْ يَابِسَةً لَأَكَلْتُمُوهَا , وَسَتَفْضُلُوهُمْ بِثَلَاثِ خِصَالٍ لَمْ تَكُنْ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ مِنَ الْأُمَمِ: نَبْشُ الْقُبُورِ.

ژباړه: خامخا د اسلام كړى به يو پر بل پسې ماتې كړئ، تر دې چې يو به هم داسې نه وي چې ووايي: مه كوه، د مخكينيو امتونو پـه لاره به لاړ شئ، په دقيقه توگه به د هغوئ پلونو باندې پل ږدئ، چې بلكل به يى لار درڅخه غلطه نه شي، او تاسو به هم نـه غلطوى، تـر دې چې كه مخكې چا وچه يا لمده پليتي خوړلې وي، نو خامخا به يي تاسو هم وخورئ، او درې خويونه بـه مـو لا ورڅخـه زيـات وي چې دا په هغو ى كې نه ؤ، يو له هغو نه د قبرونو سپړل دي.

حضرت عمر بن عبدالعزيز ﷺد اولې صدۍ مجدد دى، پـه الكواكب الدراري في شرح صحيح البخاري (١/ ٧٢)، پـه المجالس الوعظية في شرح أحاديث خير البرية (١/ ٣١٠)، په صفة الصفوة (١/ ٣٦٤)، په تاريخ دمشق لابن عساكر (٥١/ ٣٣٩) او په التقوى تعريفها وفضلها ومحذوراتها وقصص من أحوالها (ص: ١٦٢)كې د امام احمد بن حنبل ﷺڅخه روايت رانقل شوى دى، چې رسول الله ﷺفرمايلي دي: وقال أحمد بن حنبل: يروى في الحديث أن الله تعالى يبعث على رأس كل مائة عام من يصحح لهذه الأمة دينها فنظرنا في المائة الأولى فإذا هو عمر بن عبد العزيز.

ژباړه: رب العالمين د هرې صدۍ په سر كې يو مجدد راليږي، چې ددې امت لپاره تصحيح ددې دين كـوي او لـه بـدعاتو او خرافاتو څخه يي ساتي. موږ چې وكتل د اولې صدۍ په سر كـې مـو عمربن عبدالعزيز ﷺوليد.

لنډه دا چې په شام كې د اسلام د دومره عظيم خليفه د مقدس مرقد توهين د نصاراؤ او يهودو په لمسون شوى دى، . نصـرانيانو د اندلس د حاجيانو په جامو كې دوه تنه گمارلي ؤ ، چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم مقدسي حجرې ته ننوزي او د هغه مبارك جسد يوسي. يوه ژوره سمڅه ( غار ) چې تقريباً د رسول الله صلى الله عليه وسلم تر قبره رسېدلى وه، دا يې كيندلې وه . چې بيا شهيدسلطان نور الدين محمود رحمه الله د عماد الدين زنگي رحمة الله عليه زوئ ددوئ په مكر او فريب پوهه شو او دوئ الله تعالى ذليل او ناكام كړل. دوئ غـواړي چـې پخپـل دې عمـل سره د مسلمانانو زړونه غمجن او زخمي كړي. مسلمانان بايد زر تر زره ددې منحوس كردار عكس العمل وښايي او د امت د لويو هستيو په بې حرمتى باندې د يهودو څخه د انتقام هوډ وكړي.

## اى صاحب حزن

**اگر الله متعال سختى و غمى را به تو داده است بـدان كـه تـوان تحمل و وسعت آن بار را در تـو ديـده است كه بر دوشت گذاشته:**

**...لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا...البقرة آيه٢٨٦ .**

**الله به هيچ كس جز به اندازه‌ى توانائيش تكليف نمى‌كند و فراموش نكن تمام غم و اندوه و سختى هاى زندگى امتحاناتى هستند كه راه_بهشت را برايت هموارتر ميسازند...!**

**برادر و خواهر مسلمانم از سختى ها غمگين نشو اين حديث رسول الله صل الله عليه وسلم را حفظ كن و در سختى هايت بخوان:**

**پيامبر ﷺ فرمودند:**

**.«مَا يُصِيبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلا وَصَبٍ, وَلا هَمٍّ وَلا حُزْنٍ, وَلا أَذًى وَلا غَمٍّ, حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا, إِلا كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ»**

**«مسلمان، دچار هيچ گونه خستگي، بيماري، نگراني، ناراحتي، گرفتاري و غمي نمي شود مگر اين كه الله به وسيله آن ها، گناهانش را ميبخشد. حتي خاري كه به پايش مي خلد». (باعث كفاره گناهانش مي شود)**

**رواه بخارى و مسلم**

# استحمار د استعمار ستر خطر

سعد کتوازی

پر افغانستان د صلیبي یرغل دوه بنسټیزې موخې وې چې د هېواد له استعمار او د وګړو له استحمار (فکري او فرهنګي پستۍ) څخه یې عبارت دي، استعمار خو لېږ پېژندل شوی او استحمار د ولس او وګړو بشپړي بې سوادۍ، له خپل تاریخ، تاریخي ویاړونو او ویاړمنو نیکونو له اتلولیو څخه ناخبرۍ، پرې بدګمانۍ او په اړه یې شک، تر ټولو غوره کلتور او فرهنګ ته د نیمګړتیا په سترګه کتلو، په خپله عقیده او مذهب باندې بې باورۍ، د خپلو ملي او مذهبي ارزښتونو، هستیو او شتمنیو په تړاو بې پروایي او په ساتنه کې یې ناغېرۍ، له هغوی څخه لیرې والي او داسې ډېرو نورو ته وایو چې پر ځای یې د پردیو هرڅه په ښو سترګو او له هر ډول پوښتنې، ګروېږنې او په اړه یې له شک پرته ومنو، په عمل کې یې ورباندې کړو او له دې سربېره د اسلامیت، افغانیت، مېړانې دعوه هم ولرو، بلکې لا د دې دریو واړو سرسخته دښمنان او پکې ماتې خوړلې د وخت تر ټولو منحوسې څېرې، لاسپوڅي او د پردیو ګوډاګیان چې تاریخ پر خپله لمنه د تور داغ په توګه ثبت کړې او موږ ته یې را پېژني د خپل غوره سلف په صفت ومنو ترڅو د افغانانو ویاړلی تاریخ، پرګنې، غوره فرهنګ او ټول ویاړونه او ارزښتونه د واقع خلاف ثابت او د نړۍ پرمخ وشرموو.

د دغو دوو موخو د تر لاسه کولو لپاره اشغالګرو هر اړیزه نظامي او تبلیغاتي جګړه رامنځته او د هېواد له اشغاله رانیولې تر پوځ او د أمنیت تأمین، اقتصاد، رغنېزو چارو، معارف، صحت، کرهنه او مالدارۍ، کورنۍ او بهرنۍ سیاست او...چې پر نوم یې ګڼ وزارتونه او ریاستونه شتون لري ملي شتمنۍ او د یو اسلامي ملي نظام حیاتي برخې ګڼلې کېږي، په ټولو کې د اشغالګرو تر ژور نفوذ او حتی د ملت له لاسه یې په خپل واک کې اخیستو پوري هرڅه یوازې د همدې دوو بنسټېزو موخو لپاره دي، ملت تر اوسه او بیا هم د یرغلګرو رحم او کرم ته پاتې دی.

اشغالګرو له نظامي یرغل او د هېواد له اشغال سره سم یوه د خپلې خوښې استعمارګره اداره او حکومت رامنځته کړ چې له یو اسلامي حکومت څخه په توپېر د پارلمان په ګډون ډېرې نورې برخې لري، ټولې په مستقیم ډول د هغوی په واک کې وې او ورکې هو بهو د استحمار لپاره کار کېده، خو بیا هم وخت پر وخت د وګړو تش پر نوم رایو راغونډولو څخه پر استفاده یې ورته ملي نوم ور کړی وه.

د استعمار او استحمار پر دوو بنسټونو ولاړې د اشغالګرو ډېرې نورې موخې وې چې د دې دوو له رامنځته کېدو سره په فرعي او تبعي ډول ورته لاره هوارېږي او د حالاتو او وختونو په تغیر او توپیر بدلېدونکې، ترلاسه کېدونکې او یاهم له منځه تلونکې دي.

دا چې له دې دوو موخو دوهمه یې په لومړۍ کې نغښې، د اشغالګرو د اټکل خلاف هغوی له لومړي سره د استعمار په رامنځته کولو کې دلته خنډونه ولیدل او د طالبانو له شدید مزاحمت سره مخ شول، کار یې پخ او وخت یې هم تړې ډېر ونېوه، بیاهم هومره ونشو چې دوی یې اټکل کړی وه او دا ځکه چې استعمار وده ونشوه کړای، خو د دې د هڅو په دوام کې تر ممکنه حده د ولس د استحمار هڅې هم وشوې، خو په خواشینۍ سره چې د ولس او ځوانانو ډېر پام د استعمار پرځولو او جګړې لورته وه، ورکې نغښتې استحمار ته یې پاملرنه ډېره نه درلوده چې له أمله یې هغه تر یوې کچې وده وکړه او په دې وروستیو کې یې ګڼې نښې او اغېزې را برسېره شوې.

په تېر ۱۹ کاله کې سلګونه داسې پېښې او هغه څه را منځته شول چې زموږ ولس ته یې د اشغالګرو او داخلي مزدورانو حیثیت، ټولې پټې او اصلي موخې، د تېر ابستونکو دعوو او وعدو واقیعیت، د نظام د رامنځته کېدو څرنګوالی او حقیقت، جوړښت، چلښت او دوام یې، واک، ورتیا او موخې یې، تېر او راتلونکی، لاندې او باندې یې، چارې، چارواکي او پرسونل یې، زیانونه او د طالبانو پر وړاندې د جګړې او سیاست داعیه یې، زموږ له دیني او ملي ارزښتونو سره دښمني، حساسیت او ور ته یې حیثیت، د نظامي، سیاسي، فکري او فرهنګي، تبلیغاتي او اقتصادي جګړې ځمکني او کره واقیعیتونه او داسې ډېر څه یې بشپړ څرګند او واضح وښودل.

خو بیاهم ځیني وګړي چې په یاده اوږده موده کې یې دا هرڅه له افواهاتو تر اصلي واقیعیتونو پوري ټول لیدلي او پرې پوه شوي هم دي، خو لاهم پرې باور نلري او یوازې هغه څه په پټو سترګو مني، غوږ ورته نیسي. او عملي کوي یې چې پردي او پردیپال یې وایي، کوي او ورته تلقي کوي یې او هم له همدوی څخه پر هغو واقیعیتونو د پردې را کښولو ځان پرې ناکاره اچولو لپاره نه منونکي او نامعقول توجېهات او بهانې ترلاسه کوي چې خپله یې په رڼو سترګو لیدلي او پرې پر سرو مغزو پوهېږي.

ایا هغه هوایي شعارونه او بیا د عمل په میدان کې تش په نوم نووښتونه، بیا رغونې او پرمختګونه چې اشغالګر او د هغوی لاسپوڅې یې تر سیوري لاندې راغلي او درلودلې یې دي، پر هغو زرګونو هوایي بریدونو، شپنیو چاپو، ویرونو او مرګونو، ورانیو وېجاړیو او د أملاکو او

عفتونو پر لوټلو ارزېدل چې د۱۹ کاله ځمکنیو واقیعیتونو په توګه هرچا لیدلي، ویني او نړۍ ترې خبره او پرې غږېدلې ده؟ !

دا په داسې حال کې چې دغه هوايي شعارونه موږ ته د هغوی له لوري د مرستندویه ډالیو په توګه له خپلې او نړیوالې بودېجې څخه راکړه تلقي او تبلیغ کېده، په دې مانا چې دوی مو لا بدایه کړي او پکې زموږ یوه آنه مال او یو وېښته ځان هم مصرف نشي، خو وینو چې له یوې خوا د دوی شعارونه تش هوايي وختل او له بلې خوا په تریلونونو ډالر مالي او پر لکونو ځاني زیانونه هم موږ ولیدل، فزیکي او رواني ځورونه خو په حساب کې نه راځي او هغه ملي شتمنۍ او شخصي أملاک چې دوی راڅخه ولوټل د دوی د مړښت یواځینۍ مرجع ګڼل کېږي او په کار هم ده چې وګڼله شي، خو لاهم استحمار ځیلې نه پوهېږي یاهم ځکه ځان نه پوهوي چې له هېواد او مل سره د دوی کار نشته.

که ډېر لیري لاړ نشو، یواځې تېر شپږ کاله ته پر ځغلندې کتنې د نظام د درېیمې دورې نیمه خوا تاکنو ترسره کېدو سربېره شکاره په ښکاره د پردیو لــه لــوري د ګډولــه اداري رامنځتــه کېدل، د هغـه لـه لـومړۍ ورځې لـه اشــغالګرو سره د هېــواد د خــرڅلاو کـرغېړن تـرون، ورپسې لـه ګاونـډي هېواد سره پـر فـرضي کرښـه مرمـوزه معامله، پر یو او بل نوم له ګڼو لارو د ولسي خلکو عام وژنې، پر ملي عوائدو او منافعو له پردیو سره سودا، د ګډولې د چارواکو غبرګ عبدالله، غني، عطانور، دوستم، قیصاري او ډېرو نورو ترمنځ پرلپسې-نانډرۍ او هر ځل ورسره د ملت په سرمایه، عسکرو او وینو معامله ګري، د نا مسئوله وسلوالو پر نوم داړه مارو ته وده ورکول، د ملي شتمنیو چور، د نظام په سطحه اداري او اخلاقي فسادونه، د ګڼ شمېر دیني عالمانو او بانفوذه شخصیتونو ترور او هڅې یې، له ګاونډیو سره د پټې پخې ملګرتیا او پراخو معاملو سربېره په ښکاره د هغوی پر نوم د خپلو ولسونو قتل عام، په دې وروستیو کې د ولس په رایو، ملاتړ او نظام سیاسي معامله او...

د دې ډول بېلګو سلګونو او زرګونو د سترګو لیدلو مصداقونو په شتون کې بیا هم د استحمار له أمله ډېر ځوانان لا تر اوسه پر دې هیڅ ونه پوهېدل، د خپل افغانیت او اسلامیت موخې او غوښتنې لا ترې ورکې او د پردیو او پردیپالو ور په ګوته کړي سراب او په سترګو کې د اوبو پر بڼه ور بربښول شوې ختـه پسې. د سر په بیه ستړي ستومانه دي، په دې نه پوهېږي چې د دې سرچینه څه ده؟ پر وړاندې یې څه باید وشي او له چا سره یې باید حساب وشي؟ ایا هغه څه چې موږ یې کوو یابې د دې حل ګڼو رښتیا یې هم حل دی یا علی الأقل د دې هرڅه د لا پراختیا لامل خو به نه ګرځي؟.

دوی د خپلو هغو هر اړخېزو او ملي زیانونو پوښتنه نکوي چې په دې۱۹ کاله کې مو وکړل، د دې پوښتنه نکوي چې زموږ افغانیت، اسلامیت او انسانیت ته یې کومه ګټه وکړه، د دې پوښتنه نشته چې اخېر دا مو د څه او چا لپاره وکړل، دا فکر نشته چې دغه داستان له کومه را پیل، پر کومه روان او چیرې پای مومي، له طالبانو او په نورو ټکو له خپل ولس سره د جګړې انګېزه مو څه ده، د ډاکټرانو ترمنځ، د لنډغري عطانور، دوستم، قیصاري، داعش او د ارګ روزل شویو او پنځول شویو، خو د پر اصطلاح یې خپل سرو وسلوالو او ارګ ترمنځ د خونړیو جګړو انګېزه څه ده، چې ټول له همدې ارګ څخه تمویل کېږي او بیا یې هېواد، ملت، دین او افغانیت ته ګټه څه ده؟ ایا رښتیا یې هم ګټه ده که له هغې پرته سراسر زیان؟ له زیان وروسته چې بیا د معامله ګرۍ له لاري دغه نانډرۍ پای ته رسېږي دغه معاملې د ملت په سرمایه نه وي؟ ! په دې ډول په یوه موکه ملت دوه زیانونه ووینې.

بس همدا او دېته ورته ډېر نور لاملونه دي چې له أمله یې د وګړو فکري او فرهنګي پستي یا استحمار د استعمار ستر خطر ګڼل کېږي، د جګړې او سیاست له لاري به استعمار را ونړول شي او له منځه به لاړ شي لکه چې نور تللی هم دی، خو ورکې نغښتي هغه استحمار چې موږ ورته په لومړیو کې ډېره پاملرنه نکوله او په ناپامۍ کې وغوړېد، له منځه وړل یې لا ډېر کار او پرلپسې هڅې غواړي.

د هر با احساسه افغان رسالت جوړېږي چې پکې پر خپل توان سپما ونکړي، سپین روېي له خپلو تجربو او د خپل عمر په اوږدو کې وخت پر وخت د استحمار د سترګو لیدلو مواردو او أغېزو څخه له ترلاسه کړو تجربو پکې کار واخلي، ځوانان هم له ځان سره یو موټی کړي او له دیني عالمانو سره پکې په خپل ټول توان همکاري وکړي ترڅو د تېرو استعمارونو په اثر رامنځته شوي استحمار بشپړ بېخ و ابستل شي او افغانان له هره اړخه خپلواک او ازاد راتلونکې ولري چې طالبانو ورته تر اوسه هم ډېر کار کړی او لا ورځ تر بلې په پراخېدو او ګرندي کېدو دی ان شاءالله.






# د اسلامي فوځ درې نه هېريدونکي اتلان

ع محمود

له نن څخه تقريبا ۱۳۸۹ کاله وړاندي له عربـي صحراء څخـه درې أتلان د درې زره عسکرو سره د شام و خوا ته ووتل ، مقابل لوری يـي د روم د أمبراطـوری لښـکر وو چـي دوه لکـه فوځ باندي مشتمل وو ، د رومي لښکر هدف داوو چي دا د درې زره تولی بـه له مځکې له مخ څخه کاملا فناء کوو ، مګر دا د درې زرو تولی پـر دوه لکـه فوځ باندي هغه تاريخي بريا تر لاسه کـړه چـي د مځکـې پـر مـخ لـه دې مخکـي نـوه ليـدل شـوي ، مګـر دا کاميابي أو بريا وروسته تر هغه راغله چي دې دريو قمنـدانانو خپـل أرواح د أسمانونو أو مځکو څښتن جـل جلالـه په دربـار کـي نذرانـه کـړل ، دا درې أتلان څوک وه ؟ دا (زيد بن حارثة ) ـ ( جعفر بن أبي طالب) ـ (عبدالله ابن ابـي رواحة) وه.

(أول أتل) زيد بن حارثة : زيد بن محمد هم ورتـه ويـل کيـده ، دا هغـه څوک وو چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل ځان لپاره ځوی بللی وو ، دا مخکي له هغه چي د تبني نظام پـه اسلام کـي نه وو لغوه شوی ، و رسـول الله صلى الله عليه وسلم ته ډير ګـران وو ، دا هغـه څـوک وو چـي أول يـي اسلام قبول کـړ ، أو پـه قـرآن کـريم کي يي هم ذکر راغلی دی ( فلما قضی زيد منها وطرا ) .

( دوهم أتل) جعفر بن ابي طالب : په جعفر الطيار هم پيژندل کيږي ، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د أکا ځوی وو ، د حضرت علـي کـرم الله وجهـه ورور وو ، و حبشـه وو تـه د هجرت کونکو مسلمانانو أمير وو ، دا هغه څوک وو چـي د نجاشـي پـه مـخ کـي ودريـد أو اسلام يي ورته تشريح کړ.

( دريم أتل ) عبدالله بن ابي رواحة : دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم شاعر وو ، أو يـو د هغه دوولسو نقباؤ څخه وو چي رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم قبـل الهجـره د مـديني منورې لپاره ټاکلي وه ، دا هغه څوک وو چي دده په هکله رسـول الله صلى الله عليـه وسـلم فرمايلي دي " رحم الله عبدالله بن أبي رواحة ، انه يحب المجالس اللتي تتباهى بها المائکة "

د غزوه مؤتة پيل له همدي ځايه وسو ، چـي رسـول الرحمـة والسـلام صلى الله عليـه وسلم د حارث بن عمير په لاس د بصرى و بادشاه ته ليک وليږه ، د غسانيېنو د قبيلـي مشـر شرحبيل پر ځای ددي چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د قاصد سره ښه سوال او جواب وکړي بلکي هغه يي وواژه ، دې غدر رسول الله صلى الله عليه وسلم ته سخت درد ورسـاوه ، أو بيا يي د دريو زرو مجاهدينو لښکر تيار کړ تر څو چي ددغه غدر کونکـو سـره حسـاب وکړي ، د لښکر مشر يي زيد بن حارثة منتخب کړ ، که چيري هغه شـهيد سـو بيـا بـه د لښکر مشر جعفر وي ، که هغه شهيد سو بيا به عبدالله بن ابي رواحة وي ، سپين بيرغ يـي ورته عقد کړ او زيد بن حارثه ته يي ورکړ ، أو بيا يي دا وصيت ورته وکړ " أغزوا بسـم الله في سبيل الله من کفر بالله ، لاتغدرا ولاتغلوا ولاتقتلوا وليدا ولا امرأه ولاکبيرا فانيـا ولامنعـزلا بصومعة ولاتقطعوا نخلا ولا شجره ولا تهدموا بناء "

کله چي د " معان " و ښار ته او هلته د مؤتـة نـومي ځـای تـه ورسـيدل ، أو هلتـه يـي وليدل چي امبراطـور هرقـل پـه خپلـه د دوه لکـه فـوځ سـره راوتلـی دی د درو زرو نابلـدو عسکرو د جنګ لپاره ، په دې وخت کي مسلمانانو خپل په مينځ کي مشوره سـره وکـړل چي جنګ کوو که شا ته زو ، عبدالله بن ابي رواحة رضي الله عنه اصرار کاوه چـي جنـګ کوو ، خلاصه دا چـي د دوه لکـه روميـانو سـره د درې زره مجاهـدينو جنـګ شـروع سـو ، حضرت زيد رضي الله عنه أول شهيد ددي معرکـي سـو ، بيـا د اسلام بيـرغ حضـرت جعفـر واخيست ، راسته لاس يي قطع شو ، بيرغ يي په چپ لاس کي واخيست ، هغه هم قطع شو ، خلاصه دا چي شهيد سو ، بيا عبدالله بن ابي رواحة واخيست أو دا بيتونه يي وويل.

يـا نفس إن لـم تقتلـي تمـوت ... وماتمنيت قد لقيت ... إن تفعلـي فعلهمـا هديت ... وإن تأخرت فقد شقيت.

وروسته د دريو أتلانو د شـهادته د اسلام بيرغ حضرت خالـد رضـي الله عنه په لاس كـي واخيسـت ، حضـرت خالد رضي الله عنه لـه داسـي جنگـي تكتيک څخه كار واخيست چـي تـر ننه پوري په عربي حربي پوهنتونونو كي درسيږي.

أول : كلـه چـي شـپه را داخلـه سوه حضرت خالـد رضـي الله عنـه لـه ځانـه سـره يـو تـولی د مجاهـدينو واخيست توله شپه يي د معركـي پـر مځكه آسونه و ځغلـول تـر څـو چـي غبار أو گردونه پورتـه شـي و دښـمن ته دا په خيال كي وركول سـي چـي مسلمانانو ته له مديني څخه كومک راغلی دی .

دوهم : حضرت خالد رضي الله عنه د مجاهدينو د قطعو أطراف بدل كړه ، مثلا مځكـي چي په راسته جهت كي جنگيدل هغه يي چپ جهت ته كړه ، أو د چپ جهت دا يي راسته جهت ته كړه ، أو كوم مجاهدين چي د شا په قطعه كي وو هغه يي مخ ته كړل أو د مـخ دا يي شا ته كړل ، تر څو چي د مجاهدينو مځكيني هيئت كاملا بدل شو ، أو د روميانو په دي يقين شو چي مسلمانانو ته تازه دمي نور عسكر را رسيدلي دي.

دريم : يوه قطعه يي شا ته وليږل أو پر يوه أواره ساحه يي منتشره كـړه ددوی وظيفـه دا وه چي په لوړ أواز سره تكبيرونه ووايي أو په آسونو باندي د معركـي و ميـدان تـه پـه داسـي حالت كي راسي چي دښمن ته دا ور وښيي چي د مديني كومک نـدی قطـع شـوی بلكـي مستمر راروان دی.

څلورم : حضرت خالد رضي الله د جنگ په دا بله ورځ و شا ته تگ وكړ أو د مځكي و فـراخ ميدان ته يي ځان راسته كړ ، د روميانو دا يقين سو چي مسلمانانو كمين را ته نصب كـړی دی.

په همدي وخت كي الله رب العـزت د كفـارو و زړونـو تـه رعـب او ويـره واچـول چـي مځكي مو د دريو زرو مسلمانانو مقابلـه پـه ډيـره سـخته وكـړای سـوه أوس خـو دادی نـور كومک هم ورته راورسيد ، پـه همدغـه وخـت الله ج د مسـلمانانو نصـرت وكـړ ، مسـلمانان فاتحين شول ، روميانو شكست وخوړ ، مسلمانانو ته ډير بي حسابه غنيمتونه په لاس ورغله ، حضرت خالد رضي الله عنه په دې ورځ نه ۹. توري په جنگ كي د كفارو پر ككرو مـاتي كړلي ، كفار بي شميره ووژل سول. اللهم انصر أمة محمد صلى الله عليه وسلم

# وبـا

**ابن خلدون په خپل کتاب ( المقدمه) کې ويلي:**

د وبا سبب د هوا فاسدوالی دی او هوا د زياتې ابادۍ له کبله فاسدېږي، ځکه د زياتې ابادۍ په صورت کې بد بويې او فاسد رطوبت زياتېږي چې پدې سره هوا فاسدېږي، پداسې حال کې چې هوا دحيواني روح غذا ده او تل ورسره مل وي، پدغسې حالت کې فساد د روح مزاج ته سرايت کوي، نو کله چې فساد قوي وي ناروغې په سږې کې رامنځته کيږي چې دا طاعون دی او دغه ډول ناروغې تر سږيو پورې ځانګړې وي، مګر که فساد قوي نه وي خو تعفن زيات وي پدې حالت کې بيا تبې راځي چې انسانان وژني، د تعفن او رطوبت لامل د ابادۍ زياتوالی دی، په همدې بنياد د ابادیو ترمنځ بايد خلا او ازاده فضا مو جوده وي، تر څو هغه تعفن چې په هوا کې د ابادیو دكثرت او حيواناتو سره د خلطوالي لـه کبلـه واقع کيږي د بادونو په واسطه لـه منځه لاړ شي او صحيح هوا راشي، له همدې کبله مږينه په هغو ښارونو کې چې زياته ابادې لري ډيره وي نسبت و هغو ته چې ابادې يې کمه وي.

# محبه! ته نجیب څه پیژنې؟

# هغه اتل، بوتل او که قاتل؟

هاتف

په افغانستان کې ډېره کمه فیصدي خلک د نجیب ملاتړ کوي، دومره چې هېڅ په حساب نه ارزي.
په دوی کې دوه ډوله خلک دي، يو يې هغه چې د نجیب په جنایاتو اعتراف کوي او وايي چې نجیب رښتیا هم يو قاتل او خائن وو خـو د خپل ملاتړ لپاره دا دلیل وړاندې کوي چې زموږ او ستاسو د همیشني دښمن (پاکستان) خلاف وو او په افغانستان کې يې د دوی د لاسوهنو مخـه ډب کوله، نو تاسو او خدای، دا به څومره معقوله وي چې د زرګونو افغانانو قاتل ته دې له دې امله ښښنه وشي، چې هغه دې تش د پاکسـتان په خلاف د ستیج په سر شعارونه زمزمه کړي وي؟
يو څوک چې رښتیا د خپل وطن له غمه مړ وي، هغه به په يوه ورځ زرګونه د خپل ولس کسان په شهادت ورسوي؟ موږ دومره سادګان ولـې شو چې فقط د څو شعارونو په بدرګه د زرکونو افغانانو وينې خپل دښمن ته وروبښو؟ نه هېڅکله نه، دلته هر چا د خپل جرم سـزا ليـدلې او نجیب هم د زرګونه افغانانو وينې د دار تر پړي ورساوه.
دوهمه ډله خلک هغه دي چې نوي ځوانان شوي او عمرونه يې د ۲۰ يا ۲۲ کالو ترمنځ وي، دوی ته په غير شعوري ډول نجيـب د يـو اتـل پـه توګه معرفي شوی، دوی ته د نجیب د هېڅ کوم قتل کیسه نه ده شوې، دوی هېڅ کوم بچی نه دی لیدلی چې پلار يې د نجیب تر تیغ تیر شوی، دوی هغه هديره نه ده لیدلې چې په يوه ورځ د نجیب له خوا له مړو ډکه شوه، دوی فقط د نجیب هغه يو څو ويډيويي کليپونه ليدلي چـې پـه هغه کې د پاکستان په خلاف غړېدلی، زه يې د دې مخالفت په اړه هم زيات شکونه لرم.
د نظر محمد مطمئن خبره هغه ځوان چې اوس پيدا شوی او ۲۰ کاله وروسته د امريکا په خلاف د حامد کرزي ځيني ويډيوګانې وګـوري او د خپل ولس په حال يې د اوښکو ډکې سترګې ووينې، آيا د ذهن په تخته به يې د يوه اتل او هيرو په صفت نشي ثبت؟ طبعي خـبره ده او انکـار ترې کيدای نشي خو د حامد کرزي غدر له دې وطن سره له هېچا پټ نه دی، نن چې وطن په کوم حـال دی، پـه دې کـې لـوی لاس د همـدې راتلونکي ځوان نسل د ايډيال حامد کرزي دی، د نن ورځې پيدا شوی هلک چې ۲۲کاله وروسته د اشرف غني خلاصه سـينه ووينـي او د خپـل ولس سره د مينې د اظهار ويډيويي کليپونه يې تر نظر تير شي، هرو مرو به متأثره کيږي او وطن پلورونکی خائن غني به يې ذهـن تـه سـم معرفي کيږي، خو دا واورئ چې دا رکم خلک په ټولنه کې ډېر کم وي ځکه دوی له واقعي تاريخ سره نااشنا وي او په شعور
دبشري حقونو سازمان:
کابل دډيرو بشري پيښو جزيات او څيرني پټي ساتي
که څه هم حکومت د نږدې هر بريد او يا هم هرې لويې پېښې وروسته څېړنيز پلاوی ګوماري، خو د بشري حقونو خپلواک کمېسيون وايي، د دې ډول څېړنو پايلې نه ډاګيزه کېږي. دغه کمېسيون وايي، حکومت د هغو بريدونو د څېړنو پايلې پټې ساتي چې بايد له خلکـو سره شريکـې شي. دا کمېسيون وروسته تر دې دا خبره کوي چې د کابل په دشت برچي روغتون له بريده د ۲۳ ورځو تېرېدو وروسته، د بې پـولې ډاکترانـو ټولنه وايي، دوی لا هم نه پوهېږي چې دا بريد چا کړی. د دې کمېسيون کمېشنر او وياند شکرالله مشکور ويلي، تر اوسـه پـورې د حکومـت لهخوا د هېڅ يوې پېښې وروستی راپور له خلکو او آن د بشري حقونو خپلواک کمېسيون سره نه دی شريک شوی. د بې پولې ډاکترانو ټـولنې په يوه اعلاميه کې ويلي، چې تر اوسه دوی نه پوهېږي چې د دشت برچي په سل بستريز روغتون بريد چا او ولې کړی
خو دمشرانو جرګې يو سپين روبی غړي ملک قيس له رسنيو سره په خبروکې ويلي چې کلک شواهد لري چې دننګرهـار دښـيوي ولسـوالی دجنازې په بريد کې چې دهغه ځوی هم پکې ووژل شو پخواني جنګ سالار حضرت علی پکې لاس درلود دملک قيس په وينا دی دا امکـان نـه ردوي چې دکابل ددشت برچي په روغتون دې هم دکابل اداري له منځه سازمان شوی وي

# له روژې بعد زموږ مسئولیتونه

مفتي حسن زوی

رمضان ته چې الله تعالی کوم مقام اومرتبه ورکړیده څرګنده ده چې په راتلو یې مسلمانان خوښ او چې تېره شي ورپسې به خفه وي .

دروژې دفضیلت اومقام په هکله د رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کې راغلي دي چې (للصائم فرحتان : فرحة عند فطره وفرحة عند لقاء ربه)

دروژه دار لپاره دوه خوښۍ دي: یوه دروژه ماتي پر مهال اوبله درب سره دمخامخ کېدلو پرمهال.

دالله تعالی سره دمخامخ کېدلو پرمهال خو خوښي څرګنده ده خکه چې دهمدې حدیث په مخکې حصه کې راغلي دي چې الله تعالی فرمايي چې روژه زمالپاره ده او څه به یې بدله ورکوم : الله تعالی چې دخپل شان سره سمې بدلې ورکوي نو طبعاً هغه به دبندګانو دتصور نه پورته وي نو به پرې ډېر خوشاله وي .

دروژه ماتي پر مهال دوه ډوله خوښۍ بنده ته وربه برخه کېږي یوه معنوي اوبله فطري : دروژه ماتي وخت چې له یوې خوا ددعاګانو دقبلېدو وخت دی اوله بلې خوا پدې وخت کې دبنده روژه پوره ،دالله تعالی مهمه فریضه ادا او دسترو ثوابونو دحصول امېدونه پیدا شي نو معنوي خوښي یې هم بې حده زیاتې شي .

اودې وخت کې چې بنده ته داوږدې ولږې اوتندې نه پس دخوراک اوڅښاک اجازه ورکول کېږي نودلته فطري خوښي هم څه کمه نه وي.

نود روژې پسې دمسلمانانوخفګان طبعي دی ،باید چې ورپسې خفه شي.

خودرمضان دتېرېدو نه پس چې موږ خلکو ته وګورو نو پکې د ډېرو کیفیت دمایوسي وي ،داسې لکه یوډېرخوږ او قدرمن میلمه چې له چارخصت شي اوبیا یې په لندو ورځوکې دراتلو هیڅ تمه نه وي .

برعکس دخینو خلکو حالت بیا ډېر اطمیناني غوندې وي ،داسې لکه چې کار یې په تمامومعنو پوره شوی اوپر اوږو یې هیڅ مسئولیت نه وي پاتې .

که غور وشي نو دا یو کیفیت اوحالت هم دشریعت داصولو او د رمضان المبارک دروح اوپیغام سره برابر ندي .

داسمه ده چې دخیراوبرکت نه ډکه درمضان میاشت له موږ رخصت شوه خو الله تعالی او ورسره تړاو : ایمان او دایمان غوښتنې : شریعت او دشریعت احکام : دالله تعالی کتاب اولارښوونې یې : درسول الله صلی الله علیه وسلم سنت اودسنتو برکات خوباقي دي.

رمضان انتهانه بلکې ابتداء ده : رمضان له خان سره دانعمتونه ، نه وړي بلکې دا نعمتونه عاموي، ویشي یې ، خپروي یې اودخلکو تشې لمنې ډکوي اودیو عظیم پیغام پرېښودلونه پس بیا له موږ رخصتېږي .

درمضان په تېرېدو انسان له ګناهونو سپکېږي خو په مسئولیتونو یې اوږې لاپسې درنېږي .

پدې مختصر مضمون کې دخپل توان سره سم موږ همدغو مسئولیتونو ته اشاره کوو کوم چې همېشني دي او درمضان په تېرېدو تړې مسلمان نه خلاصېږي .

توبه .

له ټولو وړاندې او له ټولو زیات داړتیا وړشی چې ورته دکوم زمان او مکان قید نشته له خپلوکړو ګناهونوتوبه ده : توبه له رمضان المبارک پورې تړلې نده خو رمضان المبارک یې به محرک اومتقاضي دی او ډېره یې اسانوي خکه چې تقوی درمضان لوی غرض او غایه ده او دتقوی په اصل مفهوم کې ترک پروت دی یانې د الله تعالی له وېرې دهغه نافرماني پرېښودل اصل تقوی ده او توبه هم یواخې په

خوله توبه توبه ویل ندي بلکې توبه دا ده چې بنده ګناه پرېږدي ،پرې پښېمانه شي او په راتلونکي کې یې دنه کولو عزم وکړي .

او دګناهونو همدا ترک په روژه کې دومره ضروري او اهم دی چې له دې پرته روژه داسې ده لکه بې روحه جسد.

حدیث شریف کې راغلي دي : من لم یدع قول الزور والعمل به فلیس لله حاجة فی ان یدع طعامه وشرابه .

چاچې قول باطل (ټولې ناروا خبرې) اوپرې (پرمقتضایې) عمل پرې نښود نوالله دهغه خوراک اوڅښاک پرېښودو ته اړتیا نه لري (دالله تعالی په نزد دده عمل څه حیثیت نه لري ،نه ورته ګوري اونه پرې اجر ورکوي ).

نو رمضان دګناه پرېښودلواو ورنه دتوبې لوی پیغام له خان سره راوړي خو توبه درمضان سره خاص نده بلکې هر وخت یې په شریعت کې ډېر ستر اهمیت دی . قرآني نصوصو اونبوي ارشاداتو ته چې وکتل شي داسې ښکاري چې دایمان نه پس توبه له بل هرڅه زیاته مهمه ده .

قرآن او احادیثو ته له نظر کولو نه پس داهم روښانه کېږي چې توبه یواخې داړتیا اومجبوریت شی ندی چې بس ګناه کې بنده اخته شي نو توبه به وباسي بلکې توبه مستقل فرض عبادت دی ؛ الله تعالی ته دقرب اومحبوبیت سبب دی او دمعنویت دګر کې دترقی او پرمختګ تر ټولو ستره ذریعه ده نو خکه ورته ابرار ، صالحین اومقربین بندګان هم زیات اړ دي.

دالله تعالی صالحین اومقربین بندګان چې کله پرتوبه ویستونکي بنده دالله تعالی درحمتونوباران ویني نو خپل ډېر ستر عبادتونه ورته ډېر حقیر ښکاري او پدې ډلې کې دشاملېدلو تمناګانې کوي .

لنـده داچـې درمضـان نـه پـس تـر ټولـو وړاندې ، اهم ، اعلی او افضل کار دادی چې موږ دخپلو ټولوکړو گناهونو نه توبه وباسو او استغفار خپل معمول وگرځوو ؛ حديث شريف کې راغلي دي چـې خـوش قسـمته دی هغـه څـوک چـې دحشر پـه ورځ خپلـې عمـل نـامې کـې زيـات استغفار وموـي.

**دايمان تجديد.**

له توبې بعد بل تر ټولو مهم دايمان تجديد دی ؛ ډېر خلک گومان کوي چې بس يو ځل ايمان راوړل به ضروري وي بيا يې په اړه دهيڅ کولو اړتيا نشته ،حال داچې خبره داسې نده ؛ دايمان راوړلو نه پس دايمان تجديد ، دايمان تازگي اوايمان ته غذا ډېره اړينه ده .

حديث شريف کې راغلي دي چې ايمان داسې زړېږي لکه جامه چې زړېږي اوخيرنېږي ؛ دا نوي کوئ او خلوئ ! صحابه کرامو عرض وکړ چې څرنگه يې نوی کړو ؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: لااله الاالله په کثرت سره وايئ ! نو موږ ټول دخپل ايمان تکميل ، تجديد او تقويې ته ډېره اړتيا لرو چې دا په ډېرو طريقو ترسره کېدای شي .

**الف:** په پوره احساس، توجواوشعوري ډول د لا اله الا الله زيـات ورد ؛کـه دا ذکـر دغفلـت سره وي ؛ په شعوري ډول نـه وي او احسـاس او توجو ورسره نه وي مل نودثواب خبره يې جـدا ده خو دغفلت دا ذکر ياده گټه نه رسوي.

دصحابه کرامو رضـی اللـه تعـالی عـنهم اجمعين نه دلا اله الا الله دزيات ويلو غوښتنه شـوې وه ، څرگنـده ده چـې دکلمـې پـه معنـی دپوهېدو اوپه مفهوم کې له غور کولو پرته هغوئ دکلمې تکرار او کثرت نه کولو.

**ب: دالله تعالی دذکر کثرت او پکې قوت پيدا کول .**

کثرت او قوت دواړه جدا جدا څيزونه دي ؛ په عامو حالاتو کـې د ذکـر کـثرت پـه ذکرکـې قوت پيداکوي او دخاصوکيفياتو اوحالاتوسره د ذکر قوت دکثرت قائممقام گرځي .

دقوت معنی داده چې دخاصو کيفياتو ، توجو او استحضار سره الله تعالی ياد کړای شي ؛ ددې کيفياتو او خصوصياتو سره دالله تعالی لږ ياد هم لږ نه بلکې ډېر دی او ډېر زيات اثرات يې وي خو دا لوی معنوي استعداد ، اعلی يقين يـا داوږد محنـت ، نـدامت اوانابـت سره حاصلېږي.

**(ج ) داهـل اللـه ، اهـل يقـين سره صحبت او ملگرتيا.**

داهسې کومه استحبابي خبره نده بلکې دا دالله تعالی حکم دی ؛دايمان دتقويې او تکميل لپاره ډېره اړينه خبره او يو داسې حقيقت دی چې مسلمان خو مسلمان دی نامسلمان پوهان يې هم په ښه اثر اونتيجې قائل دی اوهيڅوک ترې هم انکار نه شي کولای.

**دشريعت ټولو احکامو ته ژمنتيا.**

له رمضان وروسته بل مهم شی چې هيڅ وخت ترې بايد غافل نه شو دشريعت احکامو ته ژمنتيا او ورباندې عمل کول دي.

رمضـان دشريعـت دټولـو احکـامو او پـه ځـانگړي ډول دگنـاهونو دتـرک لپـاره دتمـرين خصوصي او ډېر مهـم وخـت دی چـې پـه لعلکـم تتقون کې ورته اشاره شويده .

دا ډېر دفکر ځای دی چې حلال څيزونه ټوله ورځ ممنوع کړای شول او ور بانـدې بنـديز ولگول شو نوهغه شيان چـې دتـل لپـاره نـا روا او حرام دي له رمضان وروسته يې قباحـت او بـدي ولې زموږ په نظرونو کې کمه شي؟

اصل خبره داده چې په هـر مسلمان دالله تعالی له لوري دوه روژې فرض کړای شويدي يوه عارضي او بله دائمي .

درمضان په مياشت کې دصبح صادق نه تر لمر پرېوتو دخوراک ، څښـاک او نـورو ممنوعـاتو نه ځان ساتل عارضي روژه ده او دبلوغ نه پس تر مرگه پورې دممنوعات شرعيـه و نـه منـع دائمـي روژه ده.

الله تعالی فرمايلي دي واعبد ربـک حتـی ياتيک اليقين .

پدې آية کې ديقين نه مراد موت دی او پدې هـم موږ ټـول پـوهېږو چـې پـه خطابـات شرعيه و باندې بالغ مکلف بندگان مخاطب وي نودمکلفـو بنـدگانو لپـاره تـر مرگـه دالله تعـالی بندگي او تابعداري دالـله تعالی نـه بدلېـدونکی حکم دی .

دا دتعجب وړخبره ده چې دعارضي روژې بنديزونو تـه ژمنتيا ضروري گڼـل کېـږي خـو د دائمي روژې بنديزونه له نظره غورځول کېږي .

که دائمي روژه نه وای عارضي بـه هـم نـه وای ؛ عارضي روژه دلمر له راختلو تر لمر ډوبېـدلو ده او دائمي روژه دمکلفيت له زمـانې دژونـددلمر ترډوبېـدلو ده ؛ دعـارضي روژو پـه پـوره کېـدلو خلک خوشاله وي او پرې ديوې ورځې اختر وي او ددائمـي روژې لـه نيولـو او پـای تـه رسـولو وروسـته هـم يـو اخـتر راروان دی چـې دهغـې خوشالي هميشنی ده ؛ببخي نه ختمېږي او داسې ده چې سترگو ليدلی نده غوږونو اورېدلی نـده او نه دچا په زړه کې تېره شويده .

**دقرآنکريم سره تړاو.**

انسانانو ته درشداو هدايت نه ډک تر ټولو ستر اسماني کتاب قرآنکريم امت تـه پـه رمضـان المبارک کې دالله تعالی ډېـره سـتره ډالـی ده ؛له قاصد نه دا ډالی ستره ده ؛ رمضان المبـارک تېـر شو خو خپل پيغام اوخپله ډالی يې انسانانو تـه پرېښوده ؛دقرآنکريم سره تړاو دهرمسلمان فريضـه ده ؛ همدا دالله کتاب دالله تعالی ذات عاليـه تـه د قرب يواځنی ستره ذريعـه ده ؛ الفـاظ يـې سـم زده کول ،په معانيوېې ځان پوهـول ، پکـې تـدبر کـول ، د اللـه تعـالی دکـلام ،داسـماني وروسـتي ژوندي کتاب او درشد اوهدايت داصل مرجع په صفت يې تلاوت کول ، په احکامو يې عمل کول او د خدای په ځمکه يې دنفاذ هڅې دقرآن حق او ورسره دتړاو غوښتنې دي .

نودقرآنکريم سره تعلق اوتـړاو يـواځې پـه رمضان کې نـه بلکـې پـه ټـول کـال کـې ضروري دی؛ رمضان ددې تړاو دراپادولو يو لوی سـبب او ذريعه ده .

**غوره سلوک اوهمدردي**

رمضان المبارک دغوره سلوک ،همدردۍ ،غمخوارۍ ؛ غريبو خلکوسره دمرستې اواعانت مياشت ده ؛ دې مياشت تـه شهر البر والمواساة ويل کېږي ؛ دامياشت پورته يادو شويوشيانو تـه دژمنتيا پيغام له خان سره راوړي نوددې مياشت دتللونه پـس زموږ مسئوليت دی چـې داځانګـه ژوندۍ وساتو اودهغو ټولو ورونـو مـالي مرستې جاري وساتوکوم چې زموږ مرستو تـه سخت محتاج دي ؛ هسې هـم قيمتي اوبې روزګـاري زياته وه ؛ غريب خلک د ډېرو اقتصادي ستونزو سره مخامخ وو اوس دکرونا له امله دهغو خلکو پـه شـمېرکې ډېـر زيـاتوالي رغلی چـې زيـات اقتصادي مشکلات لري خو له خلکو خپل حالت پټ ساتي او چاتـه لاس نـه ور اوږدوي ؛ دوئ تـر ټولو زيات دتوجو او مرستې مستحق دي .

له اسلافو داخبره موږ ته رارسېدلی ده چې په طبيعت کې نرمي اوپـه زړه کې دهمدردۍ احساس دروژې دتاثير او قبوليت لويه نښه ده .

الله تعالی دې زموږ روژې او پـه رمضان کې کړي ټـول عبادات قبـول او دروژې اثرات دې باقي پاتې کړي آمين!

## قضا کې د امام ابو يوسف زړورتيا

قاضي امام ابو يوسف رحمه الله تـه پـه يوه موضوع کې د عباسي خليفه هارون الرشيد رحمه الله يو وتلی او نږدې قومندان د شاهدي لپاره راوستل شو، خـو هغـه يـې شـاهدي ونـه منله! قومندان هارون الرشيد ته شکايت وکړ، هـارون امـام ابـو يوسـف تـه وويـل چـې د ده شاهدي مو ولې ونه منله؟!

امام ابو يوسف ورتـه وويل: ځکـه يـوه ورځ مې له ده نه واوريدل چې ستا پـه مخکې يې ويل: زه د امير المؤمنين غلام يم، نو که دی رښتيا ستا غـلام وي؛ د غـلام شـاهدي نـه منل کيږي او که ستا غلام نه وي؛ دروغژن شو او د دروغژن شاهدي هم نه منل کيږي.

هارون الرشيد ورته وويل: که زه شاهدي ووايم، منل کيږي؟ ابو يوسف رحمه الله ورتـه وويـل: نـه، هـارون وويـل: ولـې؟! هغـه ورتـه وويل: ځکه ته کبرجن يې، د جماعت لمانځـه ته نه راځې او له عامو مسلمانانو سره يوځای د جماعت لمونځ نه کوې!

هارون الرشيد هماغلته توبه ګـار شـو، د خپلې دروازې خواته يې لوی جومات جوړ کړ او هلته به يې عامو مسـلمانانو سره د جماعت لمونځ کوه. محاسن الإسـلام ؛ للامـام محمـد بن عبد الرحمن البخاري

# رئیس جمهوری ترکمنستان

## مسجد مرکزی عشق آباد را افتتاح کرد

- قربانقلی بردی محمد اف رئیس جمهور ترکمنستان اولین روز ماه مبارک رمضان را با افتتاح یک مسجد جدید و برگزاری ضیافت الله افطاری در آن مکـان مقـدس آغـاز کرد.

به گزارش خبرگزاری ترکمنستان (ترکمن پـرس)، بـردی محمـد اف شـب گذشـته در مسجدی که خود آنرا در منطقه «پاراخات ۷» عشق آباد افتتـاح کـرد، اولـین ضـیافت افطاری را با حضور مقامات و روحانیون و ریش‌سفیدان کشور تناول و با آنهـا در بـاره موضوعات مختلف فرهنگی و اجتماعی گفت وگو و تبادل نظر کرد.

وی قبل از برگزاری مراسم افطاری در مسجد مرکـزی پایتخت کـه هزینـه هـای آن بـا حق التالیف کتاب هایش تامین شد، برای مخاطبان سخنرانی کرد و بعد از افطاری از بخش های مختلف مسجد بازدید کرد و به تشریح ویژگی هـای منحصر. بـه فـرد ایـن مسجد پرداخت.

وی پس از توضیح معنای برخی از آیه‌ها و جملاتـی کـه درون و بیـرون مسـجد حـک شده است، در بیان ویژگی گلدسته‌ها و گنبد هـای آن گفـت: "ارتفـاع گلدسـته‌های مسجد بزرگ پایتخت ۶۳ متر برابـر سـال هـای عمـر ارزشـمند پیـامبر اکـرم، بلنـدی گنبد اصلی آن نیز ۴۰ متر برابر سال بعثت پیـامبر و بلنـدی گنبـد هـای کوچـک آن ۲۳ متر برابر با مدت پیامبری آن حضـرت است. روبرداشت.






# دعاء...!!

ليکنه: موسی فرهاد

پیغمبر علیه السلام فرمایي: " لَا يَرُدُّ الْقَضَاءَ إِلَّا الدُّعَاءُ " (یواځې دعا کولی شي، قضاء (د تقدیرپریکړه) دفع کړي).

مؤمن د مقابلې لپاره دوې وسلې لري، لومړی وسله یې دعـا او دویمـه یـې اعـداد دی. پـه داسي حـال کـې چـې نامسلمان او باطل د ځان لپاره فقط یو اعداد لري، ځکه چې هغه د دعا لپاره آساس چې ایمان دی؛ نه لري.

کله چې له چا سره دوې وسلې وي او مقابل لوری یې فقط یوه وسله ولري ؛ بیـا ځنګـه شـوني ده چـې د دوو وسـلو لرونکـی دي د یـوې وسـلې لرونکـي پـه وړانـدي شکسـت وخوري.؟!

که چیري بیا هم لـه مـاتي سره مخ کیـږي نـو ښکاره خبره ده چې ده له وسلې یا خو سم کار نه دی اخیستی او یا یې ګردسره کارولې نـه ده او یـا دا چـې یـوه یـې پـری ایښـې، تنها پر یوه یې اکتفا کړې او هغه هم نیمګړې.

د حـق او باطـل تـرمنځ لـومړنی عمـلي مقابلـه؛ (د بـدر غزاء) کې د مسلمانانو شمېر خورا کم (۳۱۳) تنـه وو، وسـایل یـې هـم د نیشـت برابـر وو، امـا د کفـارو شـمېر د دوی درې برابره، یعنې څه کـم (۱۰۰۰) تنـه وو، وسـایل یـې هـم بیخـي ډېر وو.

مګر قاطع بریا د مسلمانانو په برخه شـوه، دا ځـکه چـې لومړی خو د نبي کریم صـلی اللـه علیـه وسـلم پـه لارښـوونه صحابه کرامو د جګړې لپاره حتی الوسع ښـه اعـداد وکـړ، پـه آخر کې نبی علیه السلام له خیمې را ووتی الله تعالی ته یې لاسونه لپه کړل، د مسلمانانو د بریا او فـتح لپـاره یـې تړډېـره پوري اوږده دعا وکړه. مسـلمانانو ورسره آمـین وایـه. (چـې لـږ وروسته به یې روایت ذکر شي)

کفارو تنها پر وسایلو تکیه کړې وه، او پـه همـدې تکـې غره وو چې ګویا افرادي او توکیز ځواک یې تر مسلمانانو څـو چنده زیات دی، نو طبعاً خپله بریا یې هـم حتمـي ګڼلـې وه. خو تاریخي شکست یې د تاریخ برخه وګرځید.

ځکه چې مسلمانانو له اعداد وروسته دویمه وسله چـې دعـا وه؛ وکارولـه، اللـه قبولـه کـړه، آسـماني فرښـتې یـې د مرستې لپاره را ورسیدي، فتح یې نصیب شوه.

د حـق او باطـل تـرمنځ معرکـه خـو هسيـ هـم نـه ختمیـدونکې ده، ترڅـو چـې قیامـت قـائیمیږي، د اسـلام او کفر، حق او باطل، روح او شیطان تـرمنځ تقابـل بـه هـرو مـرو جاري وي، دا د الله تعالی فیصله ده.

په همدې خاطر د مسلمان لپاره پیغمبر علیـه السـلام د دعاء سپارښتنه په ډېـر اهـتمام کـړې، کـه مسـلمان دا وسـله وکـاروي، د مـادي اعـداد ترڅنـګ معنـوي اعـداد تـه شـا ونـه ګرځوي؛ هیڅکله به د شکست مخ ونهویني.

نو پر مؤمن لازمه ده چـې بایـد پـه دې پـوه شي، چـې د ستونزو، مشکلاتو، آفاتو او مصائبو پرمهال یـې بایـد همیشـه لاسونه هغه رب ته پورته وي چې: ( یجیب دعـوة المضـطر إذا دعاه، ویکشف کربة المکروب إذا ناجاه، ویزیـل الغـم ویـذهب الهم، ویحب العبد الأواه المنیب إلیه). د مجبور دعا قبلـوي، د مصیبت ځپلي تکلیف ختموي، غـم او هـم یـې لـري کـوي، چې غوښتنه او فریاد ورته وکړي، بیشکه الله تعـالی عـاجزي کوونکی، زاري کوونکی بنده خوښوي.

همدغه د نصرت او فتح سبب بلل شوې، په خاصه توګه چې د ضعیفو او کمـزورو بنـدګانو دعـا وي، ځکـه رسـول اللـه صلی اللـه علیـه وسـلم فـرمایلي: «إنمـا ینصرالله هـذه الأمَّة بضعیفها بدعوتهم وصلاتهم وإخلاصهم» یعنـي الله تعـالی د دې امت نصرت د هغوی د کمزورو په دعاګانو، لمونځونـو او د هغوی په اخلاص باندي کوي.

په حدیث شریف کې دعـاء د مـؤمن وسـله بلـل شـوې، هغه ترټولو غښتلې وسله، او که چیري دعاء کوونکی اتقی او



پرهیزګاره وي، او په اخلاص سره دعا کوي، نو هغه امت به هرو مرو د الله له نصرت څخه تل ترتله برخمن وي.

متاسفانه په مسلمانانو کې اکثره له دې سلاح څخه غفلت کوي، چې د فتح، نصرت، فلاح او کامیابي ترټولو اغیزمنه وسیله ده. څکه چې الله تعالی فرمایي: « ..ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ.. » تاسو له ما نه دعا غواړئ، زه مو دعاوې قبلوم.

د دعا اهتمام ته ټول مؤمنان اړتیا لري، خو هغه خلک چې د خدای په لاره کې د دښمن مقابلې ته ولاړ مجاهدین وي؛ هغوی ترهرچا زیات ورته محتاج دي. چې باید هومره دعا او عبادت مهم وګڼي لکه څنګه چې پوځي تړیننګ او اعداد مهم ګڼي. نبی علیه السلام فرمایي: د غزا پرمهال د غازي في سبیل الله او د نداء (آذان) پرمهال د مؤمن دعا نه ردیږي.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم معمول دا و چې کله به غزا ته تلی نو دا دعا به یې ویله: «اللهم أنت عضدي وأنت نصيري وبك أقاتل» یا الله! ته مې ملاتړ کوونکی یې، ته مې مددګار یې او ستا د رضا لپاره جګړه کوم.

په غزواتو او جګړو کې چې کومو مؤمنانو له دعا او اعداد دواړو نه کار اخیستی؛ د فتوحاتو او نصرتونو بیلګې یې د تاریخ په ذخیره کې بې شماره دي.

د بدر پرمهال د دوعا یادونه مو مخکې وکړه، عمربن خطاب رضی الله تعالی عنه فرمایي: « لمَّا كان يوم بدر نظر النبي - صلى الله عليه وسلم - إلى أصحابه وهم ثلاثمائة ونيف، ونظر إلى المشركين، فإذا هم ألف وزيادة، فاستقبل النبي - صلى الله عليه وسلم - القبلة، وعليه رداؤه وإزاره ، ثمَّ قال: "اللهم أنجز لي ما وعدتني، اللهم إن تهلك هذه العصابة من أهل الإسلام فلا تعبد في الأرض أبداً" قال عمر بن الخطاب: فمازال يستغيث ربَّه ويدعوه، حتَّى سقط رداؤه عن منكبيه، فأتاه أبو بكر فأخذ رداءه فردَّاه، ثمَّ التزمه من ورائه ثمَّ قال: يا نبي الله ، كفاك مناشدتك ربك، فإنَّه منجز لك ما وعدك".

د بدر په ورځ چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپلو صحابه کرامو ته وکتل، چې درې سوه یوڅه بالا کسان وو، او بیا یې مشرکینو ته وکتل، چې هغوی زرتنه یا یوڅه زیات وو؛ نو قبلې ته یې مخ کړ، په داسې حال کې چې څادر او ملابند یې پر اوږو وو؛ او ویې فرمایل، خدایه راسره کړې وعده دې پوره که، یا الله که د مؤمنانو دا کوچنۍ ډله تباه کړې؛ نو د ځمکې پرمخ به دې د بندګۍ او عبادت بیا څوک نه وي. عمررضی الله عنه وایي، نبی علیه السلام پرلپسې همدا فریاد کاوه، تر دې چې څادر یې له اوږې را پریووت، أبوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه راغی څادر یې ور اوچت کړ پر اوږو یې ور واچاوه او ورته ویې ویل: ای د خدای نبی! بس همدومره مناجات دې له رب سره کفایت کوي، بیشکه چې هغه به له تاسره وعده پوره کوي.

د صحابه کرامو او د اسلام د نورو سرښندونکو اتلانو همیشه همدا معمول پاتې شوی، چې د غزواتو او ملاحمو پرمهال به یې د دعا هومره اهتمام کاوه لکه څومره چې یې د اعداد کاوه، که د تاریخ پاڼې را وسپړو ډیری کسان به داسې

مومو چې همدا پيغمبري سيرت يې د خپل ژوند معمول گرځولی وي.

د بيت المقدس د فاتح صلاح الدين ايوبي رحمه الله، يوه خبره ډېره مشهوره او د تاريخ برخه گرزيدلي، ويل کيږي چې نوموړی يوځل د شپې مهال راووتی پر يوه خيمه ور برابر شو چې گوري، دننه ورکي خلک پرلمانځه ولاړ دي، يا د قرآنکريم ذکر کوي او يا په دوعاگانو مشغول دي،،، صلاح الدين ايوبی وويل: "من هنا يأتي النصر" نصرت به له همدې ځايه راځي. يعني د دې ډول عبادتگزارو مجاهدينو په وجه به الله تعالی زموږ نصرت کوي او موږ به پر دښمن غلبه مومو.

تر دې وړاندي ولاړی، په بله خيمه کې يې وليدل چې خلک بيده دي، هيڅوک عبادت کوونکي نه ښکاري، نوموړي وويل: "من هنا تأتي الهزيمة" ( شکست به له همدې ځايه راځي) يعني د خدای تعالی له ذکر او عبادت څخه همدا غلفت به زموږ مسلمانانو د ماتي او شکست لامل گرزي.

قاضي ابن شدَّاد رح وايی: " صلاح الدين ايوبي چې به کله د دښمن له لوري د هجوم خبر ترلاسه کړ، نو سمدستي به يې تندی پرځمکه ايښوده، يعني پرلمانځه به ودريد په سجده کې به يې دا دعا ويله: اللهم قد انقطعت أسبابي الأرضية في نصرة دينك، ولم يبق إلا الاعتماد على فضلك، أنت حسبي ونعم الوكيل" ويقول: " ورأيته ساجداً ودموعه تتقاطر على شيبته ثمَّ على سجَّادته، ويقول: ولم ينقض ذلك اليوم إلاّ ويأتيه أخبار النصر على الأعداء.

خدايه! ستا د دين د نصرت لپاره زموږ ځمکني ټول اسباب ختم شوي، يوازي ستا فضل، رحم او نصرت ته سترگي په لاره يو، يا رب ته راته کافي او ښه مددگار يې. قاضي ابن شداد زياتوي: ډېر ځله مې په داسي حال کې ليدلی چې پرسجده به پروت و چې راپورته به شو، گريوان او مصلی به يې په اوښکو لامده وو، او دی وايی، زه شاهد يم چې، هغه ورځ به داسي نه تيريده چې د فتح او بريا خبرونه به نه راتلل.

الله تعالی په قرآنکريم کې د داسي مؤمنانو چې د الله په لاره کې يې خپل ژوند وقف کړی وي؛ داسي صفات بيانوي: « تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفاً وَطَمَعاً ...الآيه» [السجدة ١٦] (دوی هغه خلک دي چې ډډې يې له بسترځايونو جدا وي، له خپل رب څخه د ويري او اميد په طمع دعاگاني کوي).

نو په دې کې شک نشته چې د جهاد د بريا لپاره د کاميابی او نصرت بل ستر لامل عبادت او دعاء ته ځانگړي توجه کول دی. که چيري د مجاهدينو دا اړخ نيمگړی نه وي، نو حتمي ده چې په يو نه يو شکل به د الله تعالی له کامل نصرت څخه برخمن کيږي، د شکست پرځای به يې فتوحات په نصيب وي.

نو د عامو مسلمانانو لپاره هم پکار دی، که د مجاهدينو عملي مرسته نشي کولای معذور وي، نو دعاء خو هرو مرو ورته کولای شي، اميد دی چې هيڅ يو مؤمن به له دعاء کولو څخه غفلت نه کوي. کنه نو خدای به تري ناراضه وي.

پای....!





# په hand Sanitizer باندې لاسونه مینځل؟

(اسلام پاڼه)

پوښتنه : دکرونا وائرس څخه دحفاظت لپاره چې دلاس وینځلو لپاره اوس کوم مواد استعمالیږي لکه سیني ټائزر په دې کې ځوفیصده الکوحل ګډ دي نوددي استعمال شرعا څرنګه ده؟

الجواب . کوم الکحل چې دانګورو اوکجورو- خورما - دعصیر- شیره - څخه جوړوي نوهغه نه یوائې داچې حرام دي بلکه نجس اومردار هم دي ،چې په هرشي ګډشي هغه نجس ګرزوي اوداسي موادو له استعمال څخه ډډه کول ضروري ده اوشرعا جواز نه لري .

اوکوم الکحل چې دنورو څیزونو څخه جوړوي دهغوئ ځښل که څه هم ناروا ده مګر نجاست یې سخت اوغلیظه نه ده ،چې دسختي اړتیاپه مهال یې داستعمال ګنجایش شته . اوکه لیږپه کوم بل مائع ګډشي هغه نجس نه ګرزوي

موجوده الکوحل په ځانګړي ډول چې په پرفیوم،هینډ سیناټائزراونورو خوراکي اوغیرخوراک توکو کې ګډیږي هغه له انګورو اوکجورو څخه نه دي ،اوپه ډیرلیږمقدار باندي وي. نواستعمال یې دضرورت په وخت شرعا مشکل نه لري .

في فتح الملهم ."و أما غير الأشربة الأربعة، فليست نجسة عند الإمام ابي حنيفة رحمه الله تعالي. و بهذا يتبين حكم الكحول المسكرة (Alcohals) التي عمت بها البلوي اليوم، فإنها تستعمل في كثير من الأدوية و العطور و المركبات الأخري، فإنها إن اتخذت من العنب أو التمر فلا سبيل الي حلتها أو طهارتها، و إن اتخذت من غيرهما فالأمر فيها سهل علي مذهب أبي حنيفة رحمه الله تعالي، و لايحرم استعمالها للتداوي أو لأغراض مباحة أخري ما لم تبلغ حد الإسكار، لأنها إنما تستعمل مركبةً مع المواد الأخري، ولايحكم بنجاستها أخذًا بقول أبي حنيفة رحمه الله.

و إن معظم الحكول التي تستعمل اليوم في الأودية و العطور و غيرهما لاتتخذ من العنب أو التمر، إنما تتخذ من الحبوب أو القشور أو البترول و غيره، كما ذكرنا في باب بيوع الخمر من كتاب البيوع".فتح الملهم (كتاب الأشربة، حكم الكحول المسكرة، ٣/ ٦٠٨، ط: مكتبة دار العلوم) فقط وهكذا الفتوى المصدرة من جامعة العلوم الاسلامية كراچی برقم : ١٤٤١٠٩٢٠٢٦٩٣

والله تعالى اعلم

کتبه: مفتي ابوحامدعفى عنه

١٦\شوال ١٤٤١\هـ ق

# که امام ترمقتدیانو په لوړځای ولاړوي؟

الاستفتاء : محترم مفتي صاحب دګرمي موسم دی زیاتره خلک دمازیګر ،ماشام ،ماخوستن اوسهار جماعتونه دباندي په لوڅو مسجدونو کې کوي، زموږ دمسجد امام صاحب په برنډه کې دریږي اومقتدیان په صحن یعني په لوڅ مسجدکې دبرنډې برخه ترصحن څلور پنځه ګوتي یایوه لویشت لوړ دی یعني امام ترمقتدیانو یو څه په هسک ځای باندي دی دریږي اومقتدیان کښته وي، دافاصله خوبه دامام اومقتدیانو لپاره دجماعت دصحت مانعه نه وی؟ المستفتي مولوي عبدالمتین حماد

الجواب حامدا ومصليا وبعد: په حدیث شریف کې صراحة ددي منعه راغلي ده چې امام دي په هسک ځای اومقتدیان په ټیټ ځای وي .

روى الحاكم مرفوعا : نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يقوم الامام فوق ويبقى الناس خلفه . الخ طحطاوي ٤٣١\١ ومثله في ردالمحتار ٦٠٤\١ والعيني شرح الهداية ٨٠٥\١

همداراز دابوداود په یوه بل روایت کې راغلي دي: چې کله حضرت عمار بن یاسر په مدائن کې دجماعت لمونځ ورکاوه نوله مقتدیانو څخه په لوړ ځای ودریده حضرت حذیفه رضی الله تعالی عنه چې ولید نووروراندي شو اوهغه یې ترلاس ونیول او له لوړ ځای څخه یې راکښته کړ . اودلمانځه له فراغت وروسته یې ورته وویل : ولې تاسو دپیغمبرصلی الله علیه وسلم داحدیث نه دی اوریدلی چې ویلي یې دي : اذا ام الرجل القوم فلايتم في مكان ارفع من مقامهم اونحو ذلک ، قال عمار لذلک ابتعتک حین اخذت علی یدی . ابوداود ٩٥ \١

په دغه دواړو حدیثونوکې دلوړوالي قدر اواندازه نه ده ذکرشوي ، بلکه مطلق رفع یعني لوړوالی منعه شوی لکن فقهاؤ څخه په نوموړي مسئله کې اختلاف نقل شوی دی اوپه دي هکله دفقهاؤ متعدد اقوال راغلي دي دبیلګي په ډول

١= یو قول دادی چې که چیرې امام یولاس په اندازه تر مقتدایانو هسک ولاړ ؤ نو بیا د جماعت لمونځ مکروه کیږي او که له دي نه په کمه اندازه ؤ نو لمونځ نه مکروه اوممنوع نه ده .

٢= بل قول دادی چې که امام په دومره هسکه دریده چې له مقتدیانو څخه بیل اوجدا ښکاریده نولمونځ مکروه کیږی نور که فاصله کمه وي یازیاته .

په دغه دواړه قولونو کې علامه کاساني صاحب البدائع رح ، علامه ابن الهمام صاحب فتح القدير رح، علامه ابن النجيم صاحب البحر رح ، علامه طحطاوي، اوعلامه شامي رحمهم الله ټولو دغه وروستی قول ظاهرالروایة ګنلی دی اوهمداقول یې مختار ه کړی دی .

البدائع ٢١٦\١ والفتح ٣٦٠\١ وغيرهما

والله تعالى اعلم

کتبه :مفتي ابوحامدعفى عنه

# Srak Magazine

ولایت خوست

## ښائیستونه...

تېولیږي چې لـه خمکې نـه کـراره ښائیســتونه
لـه کلیــونه.لـه غرونــونه.لـه ښـاره ښائیســتونه

خـواره بـه څـانگې وانگې شي پـه ډېـرو خـزان زړونـو
کـه پـاتې شي تـر تـا پـوري بهـاره ښائیســتونه

خپـل حُسـن ورتـه غـم دی لکـه سـتا د گلـو څـانگې
پـه مـلا مـات دي د غـم لـه درانـه بـاره ښائیســتونه

سـاتلي دلتـه ډېـرو لـه حـالاتو دي حجـاب کـې
سـاتلي دلتـه ډېـرو دي لـه ډاره ښائیســتونه

سـېزلي يـې نـازک مخونـه تـکنـد د غرمـو ؤ
سـپېرو گـردو وهلـي ؤ غبـاره ښائیســتونه

را پرېوتـل پـه زړه اره.اره اندام.انـدام شـول
دا سـتا قـد او قامـت پـه څېـر چناره ښائیســتونه

هـر وختـې پـې زړه خورمـه.هر وخـت پـې خـوریږم
یـادیږي مـې کوچیـه سـپینه یـاره ښائیســتونه